# پوخ کانی

پټه خزانه یو واقعیت دی

لیکونکی

محمد معصوم هوتک

۱۳۷۵ش کال

# پوخ کانی

پته خزانه یو واقعیت دی؟

لیکونکی

محمد معصوم هوتک

۱۳۷۵ش کال

د کتاب نوم ــ پوخ کانی
لیکــــوال ــ محمد معصوم هوتک
د چاپ کال ــ ۱۳۷۵ش (۱۹۹۶ع)
د چاپ ځای ــ تورنتو ـ کانادا
دچاپ شمیر ــ پنځه سوه ټوکه

اهداء

ستر افغاني محقق

اکادمیسین پوهاند عبدالشکور رشاد

ته

چي د پښتو ژبي اوتاریخ ډیري سخرغوتي

د دوی په لاس خلاصي سوي دي

# فهرست

# بسم الله الرحمن الرحيم

## لومړۍ خبري

پټه خزانه دپښتو ادبیاتو یوه ډیره مشهوره او معتبره تذکره ده چي دعلم دوست اوعلم پرور پاچا شاه حسین هوتک د ادبي مجلس دمنشي محمد هوتک بن داودخان بن قادرخان په قلم په ۱۱۴۱ ـ ۱۱۴۲ هجري قمري کال په کندهار کي کښل سوې ده تول کتاب پر درو برخو ویشل سوۍ دۍ په لومړی برخه کي یې پخواني شاعران ، په دوهمه کي دمولف معاصر یا دده وعصر ته نژدې شاعران اوپه دریمه کي ښځي شاعراني معرفي سوي دي چي دمولف په ګډون تول یوپنځوس تنه شاعران ( ۶ ښځي او۴۵ نارینه ) کیږي .

ددغه کتاب یوازنی خطي نسخه چي زموږ په واک کي ده ، دافغانستان په ملي ارشیف کي خوندي ده او۱۱۲مخه لري دغه نسخه په ۱۳۰۳ هجري قمري کال دکوټې په ښارکي دمحمدعباس کاسي په قلم دحاجي محمداکبر هوتک له پاره له

هغې نسخې مخه رانقل سوې ده چې په یوزر ودوه سوه پنځه

شپیتم هجري قمري کال دنورمحمد خروټي په لاس

دسردارمهردل خان مشرقي له پاره خطاطي سوې وه .

په خزانه دلومړي ځل له پاره داروا ښاد لوی استاد علامه

عبدالحی حبیبي له مقدمې ، تصحیح ، شروحو ، حاشیو ،

تعلیقاتو ( ۶۸ مخه ) او فارسي ترجمې سره یوځای په یوزر و

درې سوه درویشت هجري شمسي کال د پښتو ټولني له خوا

دکابل په عمومي مطبعه کي چاپ سوې ده اروا ښاد علامه

حبیبي په دغه وخت کي دادبیاتوپوهنځي رئیس اودپښتو ټولني

مرستیال و . تر هغه وروسته بیا دا مهمه تذکره څلور واره د

هیواد دبیلابیلو فرهنگي موسسو له خوا چاپ سوې ده دغه راز

یې انگریزي ، الماني ، روسي ، عربي او اردو ترجمې هم

خپرې سوي دي چې ځیني یې دټول کتاب ژباره او ځیني یې بیا

دکتاب دیوې برخي ترجمه ده وروستی چاپ یې په هیوادکي

دننه په ۱۳۵۷ش کي او له هیواده بهر د۱۳۷۴ش کال د

مرخومي په میاشت کي دیوه هیو ادپال افغان ښاغلي امام الدین

ساپي په همت اومالي لګښت په المان کي سرته رسیدلئ دئ

دغه چاپ يې چي د کابل د دوهم چاپ کاپي ده ، دتعليقاتو

برخه نه لري او ښاغلي امام الدین ساپي پربې دوه مخه يادونه

کښلې ده چي ګټوري خبري پکښې دي . ښاغلي ساپي صاحب

یوه بله میرانه هم کړې ده او هغه دا چي دغه اثر چي هرڅا ترې

غوښتئ دئ پوستي لګښت يې پر خپله غاړه اخيستئ او ورليږلئ

يې دئ . پر همت دې برکت سي .

د پټي خزانې په باب خورا ډيري ليکني سوي دي چا يې

په تایید اوتوصیف کي قلمونه وهلي اوچابې په تردید کي خولې

خلاصي کري دي . دې هنګامې دعلامه حبيبي مرحوم ترمرينې

وروسته ډير زور واخیست.البته دلرغونو اثارو دکره کتنې

جریان یوه لازمي او نورمال پیښه ده اوسني باید داولنیو تیروتنې

سمي کړي ، مګر دپټي خزانې پر خلاف کمپاین چي لاجریان

لري ، په بل راز روحيه پیل سوئ دئ چي چنداني له علمي

اوتحقیقاتي معیارونو سره سرنه خوري ددغه کمپاین په مقابل

کي زما ددریدو اساسي عامل هم داد٤ چي د پټي خزانې

مخالفینو پخپل مخالفت کي له بده مرغه دعلم لمن ایله کړي ده

د جاه طلبیو اوشخصي عقدو افیزه يې په لیکنو له ورایه

ښکاري ، د یو څو تیروتنوپه خاطر ټول کتاب مجعول ګڼل

سوی دی ـ که داسي نه وای مابه هیڅکله په دې لارکي ګام نه

وای ایښی .

ارو ښاد علامه حبیبي تر وفات یوکال دمخه پخپله یوه

لیکنه کي چي په پټه خزانه کي يې دځینو تیروتنو په باب کښلې

وه ، وایي چي پټې خزانې تر چاپ او خپریدو وروسته ! . . .

په داخل اود باندي کي داسي یوه هنګامه واچوله ، چي د مینانو

اوښاغلو په قول د پښتو یوسپیڅلی کتاب اود مخالفانو په

نفــــــــوته یو ( مجعول ) اثر وګانه سو . زه د مینانود مینې

اود شکاکانود بې ځایه خبرو او تورونو دواړه پرخوانه یم ټول

شیان بایدچي پرعلمي محک ووهل سي ، اوهره شخره چي وي

ډېوه‌ي اوبصيرت په رونا کي اوارېدای سي . په دنياکي داسي
کتاب نسته ، چي څوک اعتراض پرونکرای سي اوتاريخي
کتابونه اوتذکرې خوديري تيروتني اوخطاوي هم لري مگر
ديوڅو اشتباهاتو په کړنه ، څوک گرده کتاب نه غورځوي ،
اومولف نه يې ښکنځل نه کوي . ۱

( وگورئ ـ د محمد هوتک ياد دوهم مخ )

ما په دې نيمگرې ليکنه کي د معترضينو د اساسي او
عمده اعتراضونو علتونه او جوابونه اوپه دې ارتباط نور
مطالب کښلي او هم مي د پټي خزانې د اصليت په باب خپل
کـــــورني ( خانداني ) روايتونه راوړي دي . زما دا اوسنی
زيار د هغي څېړني ادامه ده چي د يو زر و درې سوه اويايم کال
په جوزا کي مي د کراچي په ښارکي پيل کړې وه . سږکال زما
يوه فاضل ورور د يو ليک په ترځ کي راڅخه وغوښتل چي په
دې برخه کي خپلي خورې ورې ليکني سره غونډي کړم او د
يوه مستقل اثر په توگه يې چاپ کړم . له پاک خدايه راضي يم

چې د دغه کاردترسره کيدو توان يې راکړاو دادې خپل نيمګړی زيار ستاسې درنو لوستونکو مخې ته ايږدم .

په درناوي

محمد معصوم هوتک

تورنتو ــ کـــانادا

۳۱ ــ ۲ ـ ۱۳۷۵ش

۲۱ ــ ۵ ـ ۱۹۹۶ع

# دپټې خزانې په باب اعتراضونه او شکوک

دپټې خزانې په باب دزیاترو اعتراضونو

اساس د ناروېژي ختیځ پوه مارګنسترن پر هغو لیکنو ولاړ دئ

چې په دائرة المعارف اسلام طبع لندن کې یې کړي وې اوزه به

راتلونکو پاڼو کې هغو ته اشاره وکړم مستشرقینو نور د دې

څرکې له شاربلو څخه لاس اخیستئ دئ . دې اورته اوس زما

د فاضل استاد خبره ( مستشرکین ) دیر پیک وهي ( زما فاضل

استاد به ختیځ پوهان پر دوو ډلو ویشل هغه چې یې له سیاسي

ملحوظاتو دختیځ پر ژبو او ادبیاتو څیړني کوي مستشرقین او

هغه چې په ژبنیو او ادبي څیړنو کې اساسي غایه سیاسي ګڼې

وې ، مستشرکین بلل . )

زموږ په ګاوندیو هیوادو ایران اوپاکستان کې هم پر پټه

خزانه لیکني سوي دي په ایران کې دیوه افغان لیکوال له خوا

او په پاکستان کې دیوه پښتانه محقق له خوا ـ زه غوارم داورو

ته يوه لنده كتنه وكرم .

**نجيب مايل هروي** د ( تاريخ وزبان درافغانستان ) په نامه يو اثر دبنيادموقوفات دكتر محمود افشار يزدی له خوا په ۱۳۶۲ش ( ۱۹۸۳م ) په تهران کي خپور کړئ دئ دکتاب اصل نوم ( پژواک ابتذال ) و چي دناشر په مشوره يې نوم ور اړولئ او ( تاريخ وزبان در افغانستان ) يې ورته ټاکلئ دئ په دې كتاب كي دمولف په قول په افغانستان کي دفرهنګي تشتت علتونه څيړل سوي دي اوددة په نظر افغاني ليکوالوترلوسه دپښتو او فارسي مسئله په صميمانه او محققانه توګه نه ده څيړلې ، هم فارسي ژبو او هم پښتنوپه ډيرعصبيت سره يود بل په ورانـدي دريدلي دي اودا كـارد دوارو خواوو د بې هويتی سبب سوئ او دی هيله من دئ چي په دې لاره کي يوه غوټه له غوټو څخه پرانيزي ( پيش سخن اثم مخ )

په ، دا خوهغه كليشه يي خبري دي چي د زياتروډغه دول

کتابوپه سریزو کې یې څوک لولي خوچې متن ته یې ځیرسي

خبره بیخي بل راز وي . زه د ټول کتاب کره کتنه بل وخت

ته پرېږدم یوازې یې هغه برخه رااخلم چې له پښتو ادب اوپه تیره

بیا له پټې خزانې سره اړه لري ددې اثر په نوي یم مخ کې د" پټه

خزانه اصل است یا جعل" ترعنوان لاندې یو لړ مطالب راغلي

دي چې په شنلو ارزي . دی لیکي :« آقای حبیبی ویارانش

اعتقاد دارند که قدیمترین اثر مکتوب زبان پشتو به قرن هفتم

هجری میرسد ادعای آنان براساس کتابی است بنام ( تذکره

الاولیاء) تالیف سلیمان ماکو ( ۶۱۲هجری ) کتابی که چند

ورق آنرا آقای حبیبی واصحابش دیده اند ودیگران فقط چاپ

عکسی آنرا رویت کرده اند .

منبع دیگری که حبیبی ویارانش بدان استناد میورزند پته

خزانه است ، فراهم آورده محمد هوتک ، درسال ۱۱۴۲هجری

که تراجم احوال چهل ونه شاعر زن ومرد را ( درحقیقت

پنجاه ویک شاعر ـ معصوم هوتک ) در بر دارد ازسال ۱۳۹

هجری تا دوران مولف . پته خزانه را به فارسی میتوان خزانه

نهفته خواند ، واین گنج همچنان نهفته است وتنها بر حبیبی

ویارانش اصل نسخه نمایان شده . هرچند چاپ آفست وعکسی

از آن بعمل آورده اند ولی از روی عکس به اصل نسخه

نمیتوان پی برد. هم نمیتوان آنرا ازلحاظ نسخه شناسی وخط

شناسی آزمون کرد وبه محک مرکب شناسی زد » ( تاریخ

وزبان درافغانستان صفحه ۹۰ــ ۹۱ )

تردې ورروسته لیکي چي له همدې امله مارګنسترن دپټې

خزانې دزړو اشعارو او دغه راز ددغي تذکرې په باب دژبپوهنې

او تارخ پوهنې له مخې يولړ ایرادونه کړي او ويلې يې دي چي

دحبیبي دنظریاتو سموالی به هغه وخت دمنلو وړ وي چي

نومــــوړې خطي نسخه د ( فیلالوژی ) له مخې وڅیړل سي -

نجیب مایل هروی دقفید مارګنسترن دایرادو خبره دپټې خزانې

ددریم چاپ دهغي سریزې په حواله لیکي چي پکښې

ارواښادعلامه حبیبي دمارګنسترن اونورو کورنیو اوبهرنیو

شکاکانو اعتراضونوته مفصل جواب ورکړئ دئ اوپه هغه کې

یې دمارګنسترن ددغه پیشنهاد په باب چې نسخه دې د فیلالوژۍ

له مخې وڅیړل شي ، داسې لیکلي دي :« طوریکه جناب

مستشرق نوشته شده کتاب پټه خزانه باید محل تحقیق

وبازرسی علمی وزبان شناسی وتاریخی قرارگیرد ! این صحیح

ولازم است ولی ازطرف که ؟ کسی که زبان پښتو زبان مادری

او بوده وهم مبادی زبان شناسی جدید و ریشه شناسی کلمات

وتاریخ افغانستان و پشتوزبانان وتحولات السنه آسیای میانه و

سبک شناسی آن آگاه باشد . »

( پټه خزانه دریم چاپ دسریزې شپږم مخ )

په دې صورت کې نودمارګنسترن داعتراض دبیا تکرارولو

ارتیا نه پاتیږي اوماته لا دحیرانتیا خبره داده چې له دغه راز

آمادګی سره سره چې مرحوم علامه حبیبي ښودلې وه بیاهم

محترم نجیب مایل هروي لیکي :« باری آنانکه اصلی بودن

خزانه پنهان را می خواهند نمایان سازند به نعل زدن کاری پیش

نخواهند برد ، وبه قول بیهقي دبیر اگر بخواهند که معضله خزانه نهفته ، آشفته تر از این نگردد وبر پیکر وتن خوش اندام فرهنگ فارسی و پشتو در افغانستان ضربه نخورد و کارها یکرویه شود ، اصل نسخه را در معرض تحقیق و تتبع نسخه شناسان داخلی وخارجی بگذارند ، ودلایل پا برجای و سخته محققان را بپذیرند . »

زه نه پوهیږم چي دکورنیو او بهرنیو نسخه پوهانو د څیړني او تتبع مخه چا نیولې ده ؟ هیڅ‌ها . دا بالکل ناروا تهمت دئ چي ( واین گنج همچنان نهفته است وتنها برحبیبی ویارانش اصل نسخه نمایان شده ) مهرباني دي وکري خپلي څیړني دي پیل کري اصل نسخه دافغانستان په ملي آرشیف کي پرته ده او خدای دي وکري چي اوس پر کابل باندي دواکمنو توپک والاوو له خوا له منځه ورل سوې نه وي . حقیقت دادئ چي اصل نسخه دملي ارشیف په لوی تالارکي ما شخصا لیدلې لوکتلې ده او په " فهرست نسخ خطی پشتو آرشیف ملی

افغانستان کي يې مشخصات بيان سوي دي په دغه فهرست کي

دملي ارشيف ټولي پښتو خطي نسخې معرفي سوي دي او

دفهرست ترتيبوونکی ښاغلی عبدالقدير مشتری نجرابی دئ .

محترم نجيب مايل هروي د ( بيماری قديم گرايی درباره

زبان ) په مبحث کي ډيرو ښو ټکوته اشاره کوي چي له زياترو

سره يې زه موافق يم ما دښاغلي قلندر مومند دپټه خزانه فی

الميزان کتاب په باب پخپله ليکنه کي چي ټول متن به يې

وروسته تاسي ولولئ ، دې مسئلې ته داسي اشاره کړې ده :

"ادب موږ دخلورو هغه کنډولی نه بولو چي داصليت او ارزښت

اندازه يې له زرتابه ځخه تاکل کيږي بلکي دادب دارزښت

اوغنا له پاره نور معيارونه او محکونه سته چي زر او کوټ په

پيژندل کيږي که دامير کروړ ويارنه ، دښکارندوی بولله ،

داسعد سوري قصيده او نور زموږ ترگوتو رارسيدلي هم نه

وای بياهم زموږ ادب موجود و ، اصيل و ، رنگين و ، له وياره

ډک و . "

له دغه راز ذهنیت سره چې موږ یې لرو دهاغلي نجیب مایل

هروي دا لاندنی قضاوت به زما په ګومان واقعبینانه نه وي چې

وایي ؛ ولی مدافعان زبان پشتو درتنگنای صفت قدیمی بودن

زبان مانده اند ، نه از مزایای ترکیبی آن سودجسته اند ونه از

ادبیات عامیانه آن . نه به پرورش دستگاه واژگانی زبان پشتو

پرداخته ونه از روی تتبع قرض گیریهای واژگانی زبانهای

دیگر را خوش نموده اند ، و در نتیجه خزانه نهفته را بت

زبانی خویش ساخته اند ولز همه چیز مانده . ؛

( وګوری تاریخ وزبان درافغانستان اته نوي یم مخ )

**قلندر مومند** دپښتوژبې پیاوری محقق او

ښه شاعر دی دوی هم دپټې خزانې په باب قلم فرسایي کړې ده

او پټه خزانه فی المیزان په نامه یې یو اثر کښلی دی اوپه هغه

کې یې هڅه کړې ده چې دپټې خزانې په اصطلاح جعلیت ثابت

کړي.ددې اثر په جواب کې ښاغلو محمدآصف صمیم او

زرین انځور ؛ د پټې خزانې میزان ریښتیا میزان دی ؛ په نامه یو

مستقل کتاب په ( ۱۳۶۹ش ) کال په پېښور کې خپور کړ

ښاغلي پروفيسر صاحبزاده حميدالله ديښين هم د" پټه خزانه ـ

اعتراضونه او جوابونه" تر نامه لاندې يو مضمون وکيښ چې د

۱۳۶۹ش کال دسپيدې مجلې دلرم دمياشتې په گڼه کې

خپورسو. د۱۳۷۰ش کال په دوبې کې ماهم په دې برخه کې يوه

ليکنه وکړه چې په سپيدې مجله ( دويم کال لومړۍ گڼه ) کې

چاپ سوه اودغه راز ښاغلي عبدالکريم بريالي د" پټه خزانه يو

ناقابل ترديد حقيقت" په نامه يو ښه مضمون دسپيدې مجلې د

دويم کال په پنځمه گڼه کې نشر کړ اوپه همدې دول دپښتو

ژبې پياوړي محقق ښاغلي هميش خليل دتول پارسنگ په نامه يو

دروند اثر دپټه خزانه في الميزان په رد کې وکيښ چې ورومبی

برخه يې د۱۳۷۰ش کال په دلو کې خپره سوه په دې اثرکې

چې تول دوه سوه يو ديرش مخه دئ ، دښاغلي قلندر مومند

دټولو اعتراضونو جوابونه سته .

ما خپله جوابيه ليکنه د ( يارزنده صحبت باقي ) په جمله

پای ته رسولې وه او تـــــــــرهغه وروسته مې د ( هیواد )
کلمې په باب یوه څیړنه او دغه راز د ( ع ) توري دتاریخي پس
منظر په هکله یو تحقیق هم وکړ چې لومړۍ څیړنه په وفا
جریده او (دوهمه) دخپلواکۍ په مجله کې خپره سوې ده چې دادئ زما
دړې سره لیکنې دلته یو ځای درنو لوستونکوته وړاندې کوم

## د پټه خزانه فی المیزان
## کتاب ته یوه کتنه

پټه خزانه فی المیزان دښاغلي قلندر مومند یو
انتقادي اثر دئ چې په ۱۹۸۸ ع کال په پېښورکې په ښه قطع
اوصحافت په ۳۷۳مخوکې چاپ سوئ دئ دااثر دښاغلي مولف
د څو کلن زیار محصول دئ او کوښښ يې کړئ دئ چې ددې
اثر په خپرولو سره د پټې خزانې په باب خپل شکوک
لوستونکو ته په ډېر نیامت څرګند کړي چې «راتلونکې
نسلونه » له ګمراه کېدو وژغوري او د « مستقبل دتحقیق او
ریسرچ لارکښې » چې په اصطلاح « یو غټ خند » دپټې

خزانې په رابرسيره کيلو سره منځ ته راغلي دي يا منځ ته

راځي ، ليرې کړي دکتاب مولف په دې عقيده دی چې ده

«داهر ځه په ښه نيت او په دليل کړي دي » اوکه څوک « حمله »

پرې کوي نوداېه له مولف سره « ډيره لويه بې انصافي وي » او

دحملې يا اعتراض په صورت کې به «دخدای په مخکښې

ځواب ورکوي »

دښاغلي قلندر مومند ددغه راز خلوص نيت له

مخې ما دا کتاب په ډير شوق او مولف ته يې داخلاص په

روحيه ولولوست چې رشتيا سې ځو واره مې وکوت ځکه په

لومړي وار لوستلو سره يې لوستونکی اوپه تيره بيا ما وارو

مبتدي ته دا سې احساس پيداکيږي چې گويا ښاغلي مولف ډيره

مستدله ليکنه کړې ده اورشتيا هم کتاب يو جالب تحقيق دی

مگر کله چې مې هغو آثارو ته البته چې زما په واک کې رو

مراجعه وکړه چې ښاغلي مولف ترې اقتباسونه کړي دي ، پرې

زغيدلی دی او ياپې دهغوپه باب شکوک ښودلي دي ، نو مې

نظر بیخي بل راز سو له ځانه سره مي وپټیېل چي یوځه خو

باید هرومرو پر وکاږم ددا راز لیکني ضرورت مي په دوه دلیله

دیر احساس کړ لومړی داچي دپټي خزانې اوسنی نسخه زموږ په

کورني کي زما دیو مشر نیکه حاجي محمد اکبر هوتک له پاره

او دعغه په غوښتنه اوفرمایش په کونه کي دعباس کاسي په

کتابت په ۱۳۰۳ق کال استنساخ سوېده اوزه دخپل

پلارمرحوم اوخپلو نورو مشرانو له خولې غوږیدلئ وم چي

دحاجي محمد اکبرهوتک زامنو عبدالطیف هوتک او حاجي

احمدعلي هوتک دپټي خزانې ترخپریدلو مخکي لاهم ددغې

نسخې په باب بیانونه کول یعنی ددې اثر پر موجودیت پاندي

زما یقین دخپلې کورني دمشرانو درروایتونو پر بناء دئ بل داچي چانته

که یې موجودیت مشکوک وي وي به ، مګر ماته یې شته والی

دلمر په شان یو حقیقت دئ په همدې خاطر مي دپټي خزانې په

باب دشکاکانوشکوک په دیرې حیرانتیا سره اوریدل داشکوک

ماته په دې معنا وولکه یو څوک چي دلمر له موجودیت څخه

انکار کوي اوددغه انکار له پاره توجیهات او استدلال هم

راوړي ددا راز معلوماتو او سابقې په لړلو سره مي دالازمه

وګڼل چي دپښه خزانه فی المیزان په باب یو څه ولیکم . دوهم

داچي ددغه کتاب جواب په پښه خوله ورکول مي له آینده نسل

سره ډیره جفا وبلله او دڅان فریضه مي وګڼله چي ضرور باید

یوه لیکنه پر وکړم دغه راز ، کله چي مي دښاغلو محمد

آصف صمیم او زرین انځور مقالې د پښې خزانې میزان ریښتیا

میزان دی په کتاب کي ولوستلې نومي تینګه اراده وکړه چي

سربیره ، دښاغلي قلندرصاحب دکتاب په باب خو دلیکنو بهیر

پیل سوئ دئ ، څه نه ګوري قلم را اخله .

دښاغلو محمد آصف صمیم او زرین انځور په مقالو

کـــــي زما د زړه د بیري خبري سپیني سوي دي خیر دي

یوسي ښې لیکني یې کړي دي پاک خدای دي نور هم توفیق

ورکړي چي دخپلي ژبې او فرهنګ خدمت وکړي زما سره

څیني نوري خبري هم په ذهن کي سته چي دادئ تاسي درنو

لوستونکو ته یې وړاندې کوم.البته دا موجزه لیکنه زما دهغه تحقیق یوه برخه ده چې د پټه خزانه فی المیزان په باب مې کړئ دئ که ژوند مهلت او حوادثـــــو فرصت راکړ ، دلیکنو دا لړی به نوره هم دوام وکړي انشاء الله تعالی .

زه خپلې لیکنه له دې خبرې څخه رانیلوم چې دپټې خزانې موجودیت دلمر په شان حقیقت دئ څکه تر خپریدو مخکې او وروسته یې لا زموږ مشرانو دشته والي خبرې کړي دي مگر راسئ دیوې شیبې له پاره به داسې فرض کړو چې پټه خزانه نسته نه یې محمد هوتک دلیکلو ستونزې پر ځان منلې وې ، نه د سردارمهردلخان مشرقي له پاره یو نقل برابر سوئ و نه بیا حاجي محمد اکبر هوتک دځان له پاره یوه نسخه تهیه کړې وه اونه هم ارواښاد علامه حبیبي له تعلیقاتو سره خپره کړې ده بنه ، ددغه راز فرضیې په صورت کې به نوڅه اسمان مځکې ته راغلئ وای زما مقصد دادئ چې که پټه خزانه موجوده وای که نه وای ، پښتون قام موجود و ، ژبه یې

موجوده وه ، ادب یې موجود و ، لیکنی ادب یې موجود و ،

پراخ او بدای شفاهي ادب یې موجود و ادب موږ دخاورو هغه

کنډولې نه بولو چې داصلیت او ارزښت اندازه یې له زرتابه

ځخه تاکل کیږي بلکې دادب د ارزښت اوغنا له پاره نور

معیارونه اومحکونه سته چې زر او کوټ په پیژندل کیږي که

دامیر کرور ویارنه ، دهکارندوی بولله ، داسعد سوري قصیده

او نور زموږ تر گوتو رارسیدلي هم نه وای بیاهم زموږ ادب

موجود و ، اصیل و ، رنگین و ، له ویاړه ډک و.په دې خبره

کې هیڅ شک مه در گرزوۍ چې هره ژبه او ادب یې که

لرغزنی وي که پرونی خپلو ویونکو ته رنگین ښکاري او

شیرین لکه دهر قوم اوقبیلې دانسانانو ظاهري ښکلا چې پخپله

دهغه قوم له خوا تاکل کیږي دغه راز یې دادب ښایست هم په

بل هیڅا اره نه لري پښتنو ته پښتو لنډۍ،هغومره په زړه پورې

دي لکه یو فارسي ژبي ته چې کلیوالي چاربیتی دلنشیني دي .

دا مسئله بـــاید د ( قدیم ) و ( جدید ) مقولو له مخې ونه

مجیزل سي . مقصد داچي دپښي خزانې دموجودیت او صحت
دفاع موږ په دې خاطر نه کووچي که داثرد ځینوښاغلو په
اصطلاح جعلي ثابت سو نو خدای مه کړه دپښتانه کور
ونړیدی ، د ادب مانۍ بې نسکوره سوه ، ترسیالانو کم سو ،
او نور او نور. یه ، خبره داسې نه ده ـ مګر دځنو کسانو اوتي
بوتي نوهم سو منلای چي د « خاصو مصلحتونو » له امله لمر
په دوو ګوتو پټوي او په خپل دې عمل سره ګویا راتلونکی
نسل له « ګمراه کیدلو » ژغوري.

ښاغلی قلندر صاحب دخپل کتاب د ( وږومبی خبرې )
په « ز » مخ کې وایي « دديو معروضاتو دلیکلو نه پس ماته پته
ولګیده چي زما دوږومبی مقالې ځواب کښې ( مطلب به یې هغه
مقاله وي چي دپیښور د پښتو اکیډمی ددمیاشتنی مجلې۱۹۷۲
ع کال دمارچ په ګڼه کي خپره سوې وه . م . هوتک ) د
کابل بیلابیلو فرهنګي موسسو د محمد هوتک یاد ،
دامیرکرور یاد ، شیخ بستان بریځ ، دزرغونې یاد ، او دمحمد

هسوتک ژوند او مزار په شکل کړئ د ئ دیو کښې صرف

دمحمد هوتک ژوند او مزار د مسودې دلیک په دوران کښې

ماته را رسیدلئ وه چې مابې دې کتاب کښې نوتس اخستی دی

. نورو کتابونو ته ما انتظار مناسب ونه ګڼلو .... ؛ دا نقل

قول ښاغلي زرین انځور هم ( د پټې خزانې میزان ریښتیا میزان

دئ ) دکتاب په شلم مخ کې راوړئ دئ او هلته یې مستدله

تبصره پر کړې ده زما داعتراض ځینې ارخونه به دښاغلي

انځورصاحب له ځیرنې سره ورته وي او هغه داچې محترم

قلندرصاحب دیو داسې څت تحقیقي کار پر وخت ولې دومره

کتابو ته چې دده په خیال دده د وروستی مقالې په ځواب کې

لیکل سوي وو؛ انتظار مناسب نه ګڼلو ؛ د تحقیق په کار کې

ددومرې بیړې او عجلې موجبه څه وه؟په داسې حال کې چې دا

کتابونه د ښاغلي انځور په قول ؛ لیرې خو نه ، همدغه

دپښور په بیلابیلو کتاب پلورنځیو کې هم پیدا کیدای شي ؛

قلندر صاحب دڅو کتاب پلورنځیو ته دیو چا استول او دکتابو

ترلاسه کول هم مناسب ونه گڼلو. دکتابو ترلاسه کولو به ښاغلي قلندرصاحب ته دوهي گڅي رسولي وای يوداچي که يې داعتراض ور خبري پکښې موندلي وای د دوهم وار( جواب الجواب) له ليکلو به يې اوږې سپکې سوي وای په همدې کتاب کې به يې له يوه مخه ځواب ويلیځ وای اوکه کومه پر ځای ، منطقي او مستدله خبره لوستلې وای نوبيا به په دې حجم وضخامت دکتاب کښلو تکليف ته نه وای مجبور سویځ ځکه قلندرصاحب خوکتاب په ښه نيت ليکلیځ دیځ او دښه نيت لرلو په صورت کې دمنطقي ځواب منلو ته هرومرو تيار دیځ مگر نه ، قلندرصاحب وايي( خدای يو مالگي نروې دي ) که يې پريږدم چي وېې نه ليکم زه انتظار مناسب نه بولم په دې حالت کې به يې ښه نيت تر پوښتنې لاندي رانه سي ؟ لوستونکي به آيا داسې قضاوت ونه کړي چي ښاغلي مولف د (کوم خاص مصلحت ) په خاطر ددې کتاب ترلو ته ملا ترلې ده اوپه دې راز قضاوت کولو سره به حق په جانب نه وي زه خو

وایم دغو کتابو ته انتظار مناسب و،نه انتظار یې نامناسب کارو
چې دقلندرصاحب دښه نیت دعوه په زیانمنه کیږي .

ښه ، دا خودمسئلې یو ارخ و.دوهم ارخ دادئ :

زما سره ځیني دلایل سته چې دهغو له مخې ثابتیږي چې
قلندرصاحب ته دا تول یادسوي کتابونه خوبه نه وي ، مگر
دمحمد هوتک یاد کتاب هرومرو رسیدلئ دئ ! تاسي دالاندې
اقتباسونوته ښه ځیر سئ قلندرصاحب لیکي : دپټې خزانې
دآخري کاتب محمدعباس کاسي دجملې ( باستعجال تمام قلمی
شد ) په عذر درحمان بابا دوفات کال که ( ۱۱۲۸ ) په ځای
(۱۱۱۸ ) لیکل سهوکتابت نتیجه وگڼلی شي . . . نوپه
اعدادو کښې خو څه یووالی شته چې دهغې په غلط بنیاد دعوی
شوې ده . »

( پټه خزانه فی المیزان ۱۸۰مخ )

اوس باید داپوښتنه وسي چې قلندرصاحب د افغاني
لیکوالو پورتنی « دعوی » چیري لوستلې ده ؟ او له کوم اثر

ځکه يې استفاده کړې ده ؟ دی خـــــو ا صريح ماخذ ! نه

ښيي ( محمد هوتک عاجز بيا په لسګونو ځايه په دې خاطر

ملامتوي چې ولې يې ماخذ نه دئ ښوولئ پر دې موضوع به

ورروسته وږغيږم ) دوی ته خو! صرف دمحمد هوتک ژوند

اومزار دمسوې په دوران کښې وررسيدلئ وه ! دنوموړي کتاب

په ۳۳ مخ کې درحمان بابا دوفات دنيټې په باب داسې ويل

سوي دي ! د پښتو پياوړي او نوميالي محقق پوهاند

عبدالشکور رشاد دااثبته کړې ده چې په پټه خزانه کې درحمن

بابا دمرګ کال ۱۱۱۸هجري قمري ښوول يوه هندسي تيروتنه

ده چې دکاتب له تلواره پيښه ده او سهي نيټه يې ۱۱۲۸هجري

قمري ده نوموړي محقق استاد ديونس خيبري په ديوان کې

درحمان بابا دمرثيې له يوه بيته همدا خبره زباته کړې ده چې

دبابادمرګ کال ۱۱۲۸هجري قمري خيژي . ! دمحمد هوتک

ژوند اومزار دکتاب پورتنی عبارت اودقلندر صاحب دکتاب د

۱۸۰مخ عبارت خو دمفهوم او مطلب په لحاظ سره ورته دئ

مگر دکلماتو د اداکولو په برخه کي زيات توپير لري او زه په جرئت سره ويلای سم چي د قلندرصاحب د بيان ماخذ د (محمدهوتک ژوند او مزار ) کتاب نه دئ . نو ماخذ يې کوم اثر دئ ؟ راسئ ـ د محمد هوتک ياد په کتاب کي دپښتو دنوميالي محقق پوهاند عبدالشکور رشاد مقالې ته مراجعه وکړو ددغه کتاب په ۴۸مخ کي فاضل استاد داسي ليکي :

«دپټي خزانې دخطي نسخې په ۴۵مخ کي چي د رحمان بابا دمرګ کال د ۱۱۲۸پر ځای په عدد سره ۱۱۱۸ښوول سوئ دئ ، سهوالفکر نه دئ دا يوه عددي تيروتنه ده چي دمطلوبي سنې دعشراتو په کور کي پيښه سوې ده کيدای سي د دې سهوالقلم سبب د پټي خزانې د نقل کـــوونکي هغه تلوار وي چي د کتاب په پای کي يې د ( باستعجال تمام قلمی شد) په جمله سره دهغه عذر غوښتئ دئ .»

دقلندرصاحب دعبارت اودمحمدهوتک ياد په کتاب کي دفاضل محقق پوهاند رشادصاحب دعبارت تر منځ په دې

لاندي کلماتو کې واضح اشتراک سته :

الف ــ « باستعجال تمام قلمی شد » جمله په دوارو عبارتو کې سته په داسي حال کې چې دمحمد هوتک ژوند او مزار په کتاب کې نسته هلته « دکاتب تلوار » راغلئ دئ .

ب ــ د « عذرغوښتنه » په دواړوعبارتو کې سته دمحمد هوتک ژوند او مزار په کتاب کې خو هلو د « عذر » ذکر نه دئ راغلئ .

ج ــ درشادصاحب د « سهو القلم » ترکیب د قلندر صاحب په عبارت کې په « سهو کتابت » اړول سوئ دئ چې مطلب د دواړو یو دئ دسهو کتابت ترکیب دقلندر صاحب له خوا ابداع نه ده بلکې درشادصاحب د سهو القلم ترکیب مخخه ماخوذ دئ دمحمد هوتک ژوند اومزار په کتاب کې خوداترکیب بالکل اخیستل سوئ نه دئ .

له دې مقایسې مخخه صفا دا نتیجه راوزي چې ښاغلي قلندر صاحب ته دفاضل استاد رشادصاحب نوموری مضمون

رسیدلی دی او لوستلی یې دی دا مضمون د محمد هوتک یاد

په کتاب اودغه راز دکابل مجلې د ۱۳۲۱کال د ۴ــ۵گڼې په

۱۵مخ کې چاپ سوی دی دکابل مجلې نوموړې گڼه خو

هاغلي قلندرصاحب ته نه ده رسیدلې ، ولې چې دغې گڼې ته یې

دڅپل کتاب په ۲۱۳مخ کې دمحمدهوتک ژونداومزار په حواله

اشاره کړې ده نو د استاد رشادصاحب دامضمون به یې دمحمد

هوتک یاد کتاب پرته په بل کوم ځای کې لوستلی وي ؟ چې

خبره داسې ده نودقلندر صاحب ددې ادعا په وړاندې چې ده ته

"صرف دمحمد هوتک ژوند او مزار کتاب دمسودې په دوران

کښې رسیدلی وه " او( دمحمد هوتک یاد ) کتاب نه و رسیدلی

باید په ډیر احترام عرض کړم چې دا کتاب ور رسیدلی دی

او په دې مورد کې که موږ له قلندرصاحب سره " ډیره فیاضي

وکړو " او " کوم الزام " پرې ونه لگوو نو دومره خوبه ووایو

چې د دې رد انکار په خــاطر به " د خدای په مخکښې ځواب

وایي . "

اوس چي دمحمد هوتک یاد کتاب دنه رسیدلو ادعا

دقلندرصاحب دخپل کتاب په داخلي شهادت باطله سوه ، دې

خبري ته به راسو چي دمحمدهوتک ژونداومزار کتاب خو دده

دخپل اقرار له مخي ور رسیدلئ دئ نو ولي ددغه کتاب

دمطالبو په باب چوپ پاته دئ ؟ په دغه کتاب کي خو دښاغلي

قلندرصاحب ځینو اعتراضونوته ځواب ویل سوئ دئ زه

دښاغلي ورور زرین انځور له دې خبري سره بالکل موافق یم

چي وايي: ښاغلي لیکوال قلندرمومند . . . ته که په همدغه

تحقیقي بهیر کي ځه داسي سندونه په نظر ورغلي دي ، چي

دغه سندونه دهغه له نظر سره سمون نه خوري ، هغه يې هیڅ را

اخیستي نه دي یوازي دخپل نظر دملاتړ له پاره سندونه

(اویاهغه دچاخبره په دستاویزاتو) پسي گرځیدلئ دئ . »

ښاغلی قلندرمومند صاحب ته که دخپل نظر پرخلاف

ډیره منطقي اومستدله خبره هم په نظر ورغلې ده ، پر هغه يې

هم سترگي پټي کړي دي تاسي درانه لوستونکي دې لاندي

نوموړي

کړښو ته محیر سيږ . دخپل کتاب په اتلسم مخ کې

دمحمدهوتک ددې یادوني په باب چې دپټي خزانې په کښلو يې

د ۱۱۴۱هجري قمري کال دجمادی الثاني په شپاړسمه دجمعې

په ورځ شروع وکړه ، لیکې چې دجمادی الثانی شپاړسمه

دجمعې ورځ نه ، بلکې د (پیر) یا دوشنبه ورځ وه. خبره

سمه ده او رشتیاهم دلته په پټه خزانه کې سمه نه ده ثبت سوې

دا تیروتنه موږ هم‌منو او اروابناد علامه حبیبي ددې نیغې په برخه

کې داسې رایه لري : دلته زما یقین دئ چې په کتابت کې یو

عدد زیات سوئ دئ ، محکه چې ددغې میاشتې لومړی جمعه

دجمادی الاخری شپږمه ده او دغه شپږمه کاتب دیوه عدد په

زیاتولو شپاړس کړي دي . باید دپوهانوله خوا تصحیح سي . .

. دا زماحدس به محکه سم وي چې دکتاب په پای کې يې د ختم

نیټه د جمعې ورځ ۲۴د شوال سنه ۱۱۴۲هجري

(ص ۱۱۲) کښلې ده او که موږ دغه تطبیقي تقویم ته وګورو

نو ددغه کال د شوال لومړی ورځ شنبې او محلیرویشتم يې

جمعه ده ( ص ۹۷زیبولسکی ) چې دغه تاریخ بیا صحیح

رانقل سوئ دئ او د کاتب له ظالمه قلمه ژغورل سوئ دئ . ،

( د محمدهوتک ژونداومزار ـ ۳۴ مخ )

دعلامه حبیبي مرحوم پورتنی تصحیح د محمدهوتک یاد

کتاب په څلرم مخ کې هم راغلې ده او لکه مخکې چې مې

وویل دا کتاب ښاغلي قلندر صاحب ته رسیدلئ دئ دمحمد

هوتک ژوند او مزارخو یې دده په خپل قول په واک کې و

نودعلامه مرحوم پورتنی توضیح او تصحیح نه ولې چوپ پاته

سوئ دئ دلته د دوو حالتو احتمال سته یا به له پورتنی توضیح

سره موافق وي او دعلامه حبیبي یادونه اوتوضیح به پرځای

بولي ( اوبلید وېي بولي ) نوپه دې صورت کې ( دزړې غرکي

شاریلو ) ته څه ضرورت و؟ زه خو وایم چې داروابښاد علامه

حبیبي څرګندوني دښاغلي قلندرصاحب له پاره دقناعت ور دي

څکه که یې د رد له پاره لږ څه درلوداى ، نه یې سپمول او

لیکل یې . ددوی په خوله دتوافق نخښه ده څکه پښتانه وایي

(پعه خوله اقراردئ ) . خو دمطلب تکی دادئ چي ددې ضمني

توافق په موجوديت کي د زړې بابولالي بياتکرارول به آيا د

ښاغلي قلندر صاحب( ښه نيت ! ) ته ورانی پيبن نه کړي تاسي

دالاندي عبارت ته حير سئ چي قلندرصاحب دعلامه حبيبي

مرحوم له بشپړي علمي تصحيح سره سره چي په هيڅ دول د

رديلو نه ده بيا هم زره بابولاله وايي « که داثابته شي چي ۱۲

جمادی الثاني ۱۱۴۱هجري دجمعې ورځ نه وه نو دېڅي خزانې

تول عمارت به راپريوځي اويودليل به هم قاري په دې قانع نه

کړي چي ګُندي دې کتاب کښې څه اصليت شته »

( ۱۸مخ ) دقانع کوونکي جواب په شته والي کي د دغه راز

نهايي حکم صادرول به دلوستونکو او راتلونکي نسل له

« گمراه کيدلو » پرته بله کومه نتيجه ولري ؟ د کاتب له خوا د

شپږ پر ځای شپارس ليکل ، يا په بل عبارت دومره کوچنی

هندسي تيروتنه دومره لويه ګناه ده چي په اثبات يې بايد ديو

کتاب تول عمارت راپريوځي په دې حساب خو دي قلندر

صاحب دخپل کتاب پعه خزانه فی المیزان فاتحه پخپل ژوند

واخلي محکه یوازي ښاغلي محمد آصف صمیم یې ددغه راز

تیروتنو او غلطو اقتباسونو دري محلویښت مخیز لیست برابر

کړئ دئ ! په هغه کتاب کې چې دښاغلي قلندرصاحب په واک

کې دئ یعني دمحمدهوتک ژوند اومزار کي خو ددغه راز

تیروتنو نور مثالونه هم ښودل سوي دي چې کاتب : د ۱۲۲۸

هجري قمري کال د رمضان المبارک ۲۸د دوشنبې ورځ :

لیکلې مگر دعبدالقدوس هاشمي دتقویم تاریخي له مخې

دوشنبې نه بلکې شنبې ده دغه کتاب دشمس الدین قصه

جرجیس نومیږي اولیږي نه ، د پیښور دپښتو اکیډمی په خطي

نسخو کي( د ښاغلي هیوادمل صاحب په قول ) سته . په بل

مثال کې کاتب د۱۲۸۱هجري کال دربیع الأول لومړی نیټه

دوشنبې کښلې مگر د دغې میاشتې اولـــــه د پنجشنبې ورځ

ده .

( دمحمدهوتک ژونداومزار۳۴ــه۳مخونه ) دا مثالونه به

ښاغلي معترض هرومرو لوستلي وي اومنلي يې هم ، ځکه چې
پښه خوله د اقرار علامه ( نخښه ) ده نوبيا دخپلي ادعا دوهم
وار تکرارول به د « يو خاص مصلحت » له مخې نه وي ؟
قضاوت به لوستونکو ته پريږدو چې پښه خزانه « گمراه
کوونکی » اثر دی او که ميزان يې ؟ پښه خزانه به دا خاصو
مصلحتونو» له مخي کښل سوې وي که پښه خزانه فی الميزان ؟

په همدې ډول دمحمد هوتک ژوند او مزار کې
دښاغلي قلندر نورو اعتراضونو ته هم ځواب ويل سوی دی
داچې د( تشويق ) کلمه دافغانستان دجديدي فارسی زيږنده
بولي ، په نوموړي کتاب کې يې ( ۱۰۲ مخ ) جواب دمروجو
قاموسونو په استناد ويل سوی دی يا دا چې ښاغلی معترض په
پښه خزانه کې د « خپسر ـ ترو ـ ځبله ـ نه ـ ځځو . . . . »
کلمو ته شته والی دکتاب دجديليت نخښه بولي ـ دې اعتراض
ته هم دمحمد هوتک ژونداومزار کتاب په يوسلودريم مخ کې

جواب سته مگر د معترض صاحب له خوا پر نوموړو جوابونو

برسیره دخپلو اعتراضونو بیا تکرارول او زاړه دول ته لرګی

اچول به بله څه معنا ولري ، بې له دې چې څوک ووایي بناغلي

قلندر صاحب دپښتنو له راتلونکي نسل څخه د لارې لیکې

ورکیدلو تکل کړی دی ـ خدایږو که له دې کاره لاس واخلي !

په پټه خزانه فی المیزان کې یو اعتراض دادی چې

محمدهوتک ولې ؛ دموضوع دختمیدلو نه پس ؛ د فصل لفظ نه

دی کښلی ـ ولې یې په ؛ سورخط ؛ فصل یا ؛ ذکر د . . . . ؛

نـــه دی لیکلی (دکتاب ۴مخ ) ولې یې ؛ ژب ، نور ،

حیوانات ، نست ؛ د ژبه ، نورو ، حیواناتو ، نسته پرځای نه

دي لیکلي ( دکتاب ۵مخ ) دا ځکه چې متقدمینو به همداسي

کول ! یا یې ولې کتاب پر درو برخو ویشلی دی ځکه چې

متقدمینو به دا راز ویش کاوه !

اول خو موږ ته دانه ده معلومه چې محمد هوتک به په

خپل لاس کښلې پټه خزانه کې څه دول رنګ استعمال کړی وي

تور که سور که بل رنگ . دامحکه چې اوسنی نسخه چې

دافغانستان په ملي آرشیف کې خوندي ده ، دریم نقل دی چې له

اصل مخخه نقل سوی دی . دغه لاهم نه ده مخرگنده چې د

سردارمهردل خان نسخه به له اصل مخخه نقل سوې وي که له

کوم بل نقل مخخه . بل داچې دهاغلي قلندرصاحب په نظر

متقدمین یوه داسې منسجمه او پر یوه اکادمیک مرکز راتوله

تولی وه چه له کندهاره تر اټکه یې دکتاب د ترتیب مشترک

اصول درلودل او پالل یې ، دلیکدود په باب مشترکې فیصلې ته

رسیدلي وو او بې له انحرافه یې پالله حتی دکتابت په برخه کې

درنګو داستعمال په باب یې هم واحد موقف درلود ، پر ولاړ

وو او پاله یې . که داسې وي نو محمد هوتک رشتیا هم مقصر

دی مگر خبره داسې ده نه . متقدمین خو لا پریږده همدا اوس د

کمپیوتر په عصر کې لا هم دکتابو دترتیب او لیکدود ګډ

اصول او ګډه طریقه نه پالله کیږي آیا دغه راز لیکدود چې په

پټه خزانه فی المیزان کې تعقیب سوی دی له نورو سره توپیر

نه لري ؟ آیا نـــــــور لیکوال ( ښځه ، وږه ، نږه ، وږد ،
خُله ، لُست . . . . . ) په همدې شکل کاږي؟ موږ له مشترکو
فیصلو سره سره نه یو قادر سوي چې دکـــــابل او پیښور تر
منځ د ( ن ) او ( نږ ) پر سر اختلاف په بشپړه توګه حل کړو
او واحد لیکدود وپالو مګر ښاغلی قلندر صاحب « متقدمین »
دداسې املایي اصولو پابند ګڼي چې سرغړونه یې دکتاب د
« جعلیت » دستاویز شمیرل کیږي . زما سره همدا اوس دمیرزا
حنان بارکزي د دیوان یوه خطي نسخه سته چې غالبا به دشاعر
په خپل قلم کښل سوې وي داستنساخ کال یې ۱۲۸۰ هجري
قمري دئ یعني دهغې خزانې د دریم نقل تر کتابت درویشت
کاله دمخه لیکل سوې ده ، مګر دقلندر صاحب دخه لیکدودي
اصول چې « متقدمینو » نه یې وضع کړي دي ، پکښې مراعات
سوي نه دي لیکدود یې تر زیاتې اندازې له پټې خزانې سره
ورته دئ حتی دکتابت کال یې په هندسه ( ۱۲۸۰ ) او په تورو
( الف ماتین خمسین ) کښلئ دئ مګر ماته او هیڅ واقعبین

لوستونکي نه دا خبره په زره کې لاهم نه گرزي چې گویا دا نسخه دې جعلي وي او دسني داختلاف په وجه به یې تول عمارت را پریوځي .

( محترم لوستونکي دې دمیرزا حنان بارکزي د دیوان نوي چاپ ته مراجعه وکړي چې ددې کرښو دلیکونکي له خوا سږ کال خپور سوی دئ ) ۱۳۷۰ ش

زما په شخصي کتب خانه کې په لسګونو داسي قلمي نسخې سته چې په یوه عصر کې لیکل سوي دي خو املایې توپیر یې خورا ډیر دئ زه په یقین سره ویلای سم چې دا راز موارد به د ښاغلي قلندر صاحب په سترګه سوي وي ځکه خطي نسخې یې زیاتي لیدلي او کتلي دي صرف د رحمان بابا د دیوان شپارس نسخې یې کتلي دي ( پټه خزانه فی المیزان ۱۹ مخ )

« پر صفحاتو باندي په هندسو کښې » د شمیر دلیکلو په باب د پټه فی المیزان کتاب په شپږم مخ کې لولو« که

دنولسمي صدی بله یوه نسخه کښې چرې دصفحاتو شمیر په

هندسو کښې را وښیلی شي نو زما اعتراض به غلط شي !

دمحمد هوتک ژوند او مزار کتاب په شپږ ویشتم مخ ښاغلي

هیوادمل صاحب اووه ، اته داسي نسخې راښوولي چي دهاني

نمره لري او زیاتره يې دپېښور دپښتو اکیډمی په خطي کتابونو

کې خونديې دي دا نسخې که ښاغلي قلندر صاحب کتلي نه وي

دهیوادمل صاحب دیادوني په صورت کې خو به هرومرو پر

ځان دا تکلیف منلئ وي چي آیا په رشتیا سره دا نسخې دپاڼو

نومرې لري که یه ؟ دا تحقیق يې ضرور کړئ دئ خوموضوع

بیا له سره شاربې . نه پوهیږم ولي ؟

د اوو ، اتو نسخو ښودل آیا دقلندر صاحب چلینج نه

ماتوي . دخپل کتاب په اووم مخ کې خو دهند د کتابخانو په

پښتو قلمي نسخـــو کې پر یو کتاب چي ( نمبري ) لري ،

اعتراف سوئ دئ دقلندر صاحب خپل بیان داسي دئ « گویا د

هند د کتابخانو په تولو پښتو قلمي نسخو کښې صرف یو

کتاب ( نمبري ) لري . ! په دې اعتراف خو يې دخپل کتاب د شپږم مخ اعتراض پخپله ( غلط ) ثابت کړ ، زه به موڅه سر در خوږوم .

دپټه خزانه فی الميزان په ۱۶-۱۷ مخ کې ويل سوي دي ! په پټه خزانه کښې داسې ډيرتوري او ترکيبونه استعمال شوي دي چې دهغو داستعمال په باره کښې مونږ خو غلطي کولی شو خو له هغه متقدمينو دچا په وجه چې دالفظونه تر مونږ رارسيدلي دي دداسې غلطی امکان قطعاً نه شو کيدی اوداغلطی دپټې خزانې داصليت دعوی مشکوکوي . ! زه نه پوهيږم چې د قلندر صاحب په نـــــــظر دا متقدمين انبياء ( ع ) دي (نعوذ بالله من ذلک ) که ها څه دي چې له خپلو اصولو څخه قطعاً نه تيريږي او له تيروتنو اوگناهونو څخه معصوم دي ما مخکې هم دخپل کوچني کتابتون دقلمي نسخو عرض وکړ چې ديوه عصر په لسگونو داسې نسخې پکښې دي چې نه واحد ليکلود او نه واحد توري او ترکيبونه لري زما عاجز خو له

خپلو کتابو څخه ( چې په ډېر شوق او زیارمې راغونډ کړي

دي او اوس په وطن راڅخه پاته دي ) بېخي زړه تور سو څکه

دقلندرصاحب دداسې قاطع «حکم » په اساس خو هغه ټول

« جعلي » سول ! او « د اصلیت دعــوی یې مشکوکه » ! که زه

اوس دېردیسی له شخصي او عمومي ستونزو سره مخامخ نه

وای نوددغو کتابو دمطلوبو ځایو فوتوکاپي خومې

هرومرو قلندرصاحب ته ورلیږلې .

ښاغلی معترض یوځل دپټې خزانې مولف په دې تورن

کوي چې دکتاب دترتیب طریقه یې معاصر روش ته ورته ده

اوپه یوولسمه صدۍ کې دا راز روش رواج نه درلود بل ځای

چې دمتقدمینو پر پله ګام ږدي ، بیا زموږ دزمانې دتحقیقي

اصولو دپیروی تقاضا ورڅخه لري او په دې یې مقصر ګڼي

چې ولې یې دپلاني دزیږیدو یا وفات دکال ماخذ نه دئ ښودلئ

- پلانی خبره یې ولې بې حوالې کړې ده ( جالبه ده یو ځای د

محمد هوتک عاجز څخه د هغه د پلار د تولد د کـــال

« صریح ماخذ » خواري ! ) ( دکتاب ۲۰۸ مخ )

یو ځای لیکي « د تاریخي اوتنقیدي روایاتو تقاضا دا وه چي محمد هوتک دا ښیلی وی چي ده داغــــزل ( درحمان بابا غزل ـ م .ه) له کومي نسخې رانقل کړی دی هغه چا او کــله لیکلې وه . » ( ۱۹۱ ـ ۱۹۲مخونه ) دا تقاضا خو پر ځای ده ، مـــــــگر نه له « متقدمینو » څخه . دا کار اوس د « تاریخي او تنقیدي روایاتو » له پاره حتمي دئ ځکه د تحقیق او نقد اصول وضع سوي او عام سوي دي زما بیا یقین دئ چي د « متقدمینو » په نورو تاریخي او ادبي آثارو کي ، قلندر صاحب هرو مرو پر داسي مواردو پیبن سوئ دئ د ( راویان اخبار ) او ( ناقلان . . . ) پر عبارتونو بې ضرور سترګي لګیدلي دي دهغو په باب بې سکوت غوره ګڼلئ دئ .

ولي بې یوازي پټه خزانه پکښې انتخاب کړه ؟

د پټه خزان فی المیزان کتاب له ۱۷۵ مخ څخه بیا تر ۲۱۲ مخ پوري ټول هغه فرمایشات دي چي مولف بې محمد

هوتک نه ورکوي . ولې دې دا سنه نه ده کښلې ؟ ولې دې

ماخذ نه دی ښوولی ؟ ولې دې دپلاني شاعر په باب معلومات

نه دي راکړي ؟ ولې دې دپلاني ديوان ذکر نه دی کړی؟ او په

لسگونــــــــو دا راز ( ولې ؟ ) . که دې ټولو ( ولې ) ته

محمد هوتک ځواب ويلی وای رشتيا به يې کتاب نور هم په

زړه پوري سوی وای کاشکې يې داسې کړي وای هم به دپښتو

ادب تاريخ نوري تيارې روښانه سوې وای او هم به دقلندر

صاحب قيمتي وخت د پټه خزانه فی الميزان په کښلو ضايع

سوی نه وای مگر خو دا کار يې نه دی کړی او موږ هم دپټې

خزانې پر تيروتنومعترف يو لکه په لسگونو نور آثار چې

تيروتني لري ــ پټه خزانه يې هم لري د نعوذ بالله ( لاريب فيه)

حکم وضع دقلندر صاحب خپله اختراع ده ـ هيڅا او هيڅ

افغاني ليکوال او نورو خواخوږو پښتنو دا شان ادعا نه ده کړې

مگر له دې تيروتنو سره سره چې دزياترو دتوجيه له پاره زموږ

ښاغلو ليکوالو علمي دلايل ويلي او جوابونه ورکړي دي ، د

« جعلي » حکم هم نه منو اودا یوه بې انصافي گڼو. ښاغلی قلندرصاحب دپټې خزانې مولف په دې خبره کړي چې ولې بې د( بلدنی ) کلي نوم ( بلدنی ) لیکلی دی او « پښتون هوتک نه .
.. دا ولې معلوه نه وه چې ( بلدنی ) دپیښور په نواح کښې یو کلی دی او ددې کلي ذکر( اوپه پیښور او بلدنی ) نه بلکې (دپیښور په بلدنی ) په صورت په کار وو . »( ۱۴ ـ ۱۵مخونه)

د بلدنی دناسم تلفظ یو بل مثال دمحمد هوتک یاد کتاب په ۱۱۴مخ کې داسې ښودل سوی دی « دنمونې په توگه ښاغلی عبدالحلیم اثر سالارزی چې دبلدنې پر سیند په وارو وارو تېر بېر شوی ، په تیر هیرشاعران کې دبې بې گلې دپېژندگلوي په برخه کې د بې بې نیکبختې ژوند څېړي په دې څېړنه کې ۲۳ځـــــایه د ( بلدنی ) نوم راغلی چې پنځه ځایه (بلدنی ) او نورنولس ځایه ( بلدنی ) ضبط شوی دی . « ښاغلي بریښ دا موضوع په دیر پاخه منطق دیره ښه څیړلې ده موږ په

تیرو پانو کې دا مسئله څیرلې ده چې قلندر صاحب ته دمحمد

هوتک یاد کتاب رسیدلی دی مګر اوس چې پرېږ منکر دی نو

دانکار په صورت کې موږمجبور یو چې نور دې ته ورته

مثالونه ورکړو چې پکښې دعایو او اشخاصو ناسم تلفظ یا د

پښتنو له خوا دعایونو غیر پښتو تلفظ سوی وي خو هیڅا هم

دناسم اوغیر پښتو تلفظ په ګناه ! کتاب جعلي نه دی ګڼلی

آخر په همدې پېښور کې مو دپښتنو له خوا پر پښتو کتابو د

پشاور پته نه لوستې همدا اوس چې دا کرښې کاږم یو دوه

کتابه راته مخ‌ته پراته دي پر یوه یې کښلي دي :

« ډاګخانه ـ عمرزایي تحصیل چارسده ضلع پشاور » کتاب

پښتو دی او مولف یې پښتون . پر بل یې کښلي دي

(دملاویلو پته : شهر پشاور ـ جنډا بازار ـ مولوي نورګل

صاحب چای فروش ) کتاب پښتو دی او مصنف یې پښتون .

په پشاور سره د پېښور دتلفظ مثالونه ، هغه هم دپښتنو له خوا

دومره ډیر دي چې لیست یې رسالې غواړي مګر موږ دلته

دومره تنگ نظري کیږو نه ، چې د ( سیف الموحدین ) او

(بهار مدینه ) کتابونه دي چې مخکې مې یې دمثال له پاره

نومونه یاد کړل ، دپیښور دغیر پښتو تلفظ په خاطر جعلي

وبولو ـ په هیڅ صورت نه .

ښاغلی انوارالحق داودزی ( دپټه خزانه فی المیزان

خطاط ) په هیڅ ډول نه مــــــــلامتوو چې د ( نارنج )

قصر یې د ( تاریخ ) قصر کــــــبلی دی ( ۳۴۴ مخ )

یایې د ( تشویق ) کلمه یې ( تشریق) کبلې ده ( ۲۱ مخ ) ،

یایې د( شاه محمود هوتک ) پر ځای ( شاه محمد هوتک )

ضبط کــــــــری دی ( ۱۹۸ ـ ۱۹۹مخونه ) یایې د

افضل اطرانق د مولف ملا پیرمحمد میاجي نوم ( ملا میرمحمد)

لیکلی دی دوزیرصاحب محمد ګل خان مومند نوم یې

ګل محمدخان مومند کبلی ( ۱۰۲مخ ) په دې پنځو

تیروتنوکي صرف لومړی یې په سبحان الله کي سمه سوې ده

(سبحان الله دقلندرصاحب په کتاب کي دغلطنامې نوم دی )

موږ وایو انسان دئ ، غلطي کوي ، په کندهار کې بلد نه دئ
نو عاجز ته به د ( نارنج ) دقصر څه پته وه . دشکر ځای دئ
چي دا تیروتنه په سبحان الله کي سمه سوې ده ، که نه خدای
خبر چي ښاغلی داودزی او دپټه خزانه فی المیزان مولف ته به
څینو ( کوتاه بینو ) تر وفات وروسته څه هم نه وای ویلي ؟ !

ښاغلي قلندر صاحب د ږوب دتلفظ په برخه کي هم
قلمفرسایي کړې ده او لیکلي : دپټي خزانې په دیرو ځایونو
کښې د ( ژوب ) او ( پشین ) ذکر د ( ږوب ) او ( پښین ) په
ترتیب ، په شکل شوی دی ددیو دوارو منطقو دنوم په تلفظ
کښې په پښتنو کښې هیڅ اختلاف نشته او نه د دیو نومونه د
( ږ ) او ( ښ ) په مخصوصو آوازونو وئیلی کیږي ـ البته دا
صحیح ده چي جلید افغانستان کښې دا عـــــلاقې هم دغسې
د ( ږوب ) او
( پښین ) په شکل لیکلی شی لکه چي پټه خزانه کښې لیکلي
شوی دی . » ( ۳۳۴مخ ) دحیرانتیا خبره داده چي یو وار

دخپل عادت له مخې غوڅ حکم کوي چې : ددېو منطقو دنوم

په تلفظ کښې په پښتنو کښې هيڅ اختلاف نشته : يوه کرښه

وروسته بيا خپل حکم بيرته اخلي او وايي : البته داصحيح ده

چې جديد افغانستان کښې دا علاقې هم دغسې د ږوب او پښين

په شکل ليکلی شی : زه پر زياتوم چې نه يوازې : ليکلی شی :

بلکې په همدې شکل : لوستلی هم شی : دکوټې ، پښين او

ږوب اوسيدونکې چې همدا نن ورځ دغه سيمې هم دږوب او

پښين په شکل او هم د ژوب او پشين په ډول لولي او ليکي ،

څه پښتانه نه دي ؟ چې قلندرصاحب د : هيڅ اختلاف نشته :

حکم صادروي . دچمن اڅکزي ، دږوب کاکړان خو دقلندر

صاحب په اصطلاح د جديد افغانستان اوسيدونکي نه دي . دوی

بې ولې دږوب او پښين په شکل تلفظ کوي ؟

ښاغلی معترض يو ځای ليکي : بابا هوتک په لوړ ږغ

داسندره لولوله . . . . : ( ۱۷۷ مخ ) له دې خبرې به ورتير

سو چې له پټې خزانې څخه دنقل قول په وخت کې ښاغلي ناقل

په عبارت کي ناروا تصرف کړی دی ځکه هلته ( ژغ ) په

همدې شکل نه ، بلکي ( ږغ ) ضبط دی دا کلمه پښتانه د

( ږغ ، غږ او ژغ ) په شکلونو تلفظ کوي دکندهار تلفظ یې

( ږغ )دی او په افغانستان کي یې اوسنی مروج تلفظ چي په

لیکنه کي دمعیار په دول منل سوی دی ، ( غږ ) دی . نو

دکندهاری لهجې پر خلاف ( چي پټه خزانه په همدې لهجه

کښل سوې ده ) د ( ژغ ) ضبط به دحاځلي قلندرصاحب

دکتاب د« جعلیت » دلیل تصور کړو ، او وایو به چي پښتون

قلندر ته ولي دا نه وه معلومه چي داکلمه کندهاریان د( ږغ ) په

شکل تلفظ کوي . دژوب او ژوب ، دپښین او پشین ، دبلنی

او بلنی په برخه کي دقلندر صاحب استدلال دیر کمزوری دی

بې غرضه څیړونکو ته یې منل گران دي .

نه پوهیږم حاځلی قلندر دپټي خزانې مولف ته ولي دومره

خبسمیدلی دی هغه وایي « زما پلار داودخان په۱۰۲۹ هجري

کال زیږیدلی دی » دی پر راغورځي « صریح ماخذ » څیني

خواري ( فكر مو دئ ، له زوى محخه دپلار دتولد دنيټې ماخذ
خواري ! ښايي د ښاغلي قلندر په نظر به متقدمينوپه دغه راز
مواردو كې ماخذونه ښوول ! ) هغه وايي چې ؛ زماپلار په هغو
جنګو كې شريک و چې ميرويس نيكه له ګرګين سره كړي وه »
دی پر ور داتګي اوليكي ؛ حالانكي تاريخ كښې دداسې يو
جنګ هم ذكرنشته چې دميرويس نيكه او ګرګين خان تر منځه
شوی وه تاريخ ديوې خونړی واقعې ذكر كوي چې دهغې په
نتيجه كښې ګرګين ووژلی شو. . . . ؛ ( ۲۰۸ مخ )
ډيره جالبه ده ! محمد هوتک ته دخپميلو په خاطر
دميرويس نيكه او ګرګين تر منځ پر جګړه هم ناګاره كيږي
ددې جګړې په بيان خو تاريخونه ډک دي ( ښاغلي لوستونكي
دي ددې جګړې بيان دپښتنوتاريخ لومړی توک ۵۵ مخ ،
افغانستان درمسيرتاريخ ۳۲۰مخ ، ميرويس نيكه ۲۳ ـ ۲۵
مخونوكې وګوري ) زمـــا په خيال د قلندرصاحب مقصد به
تن په تن جنګ ( دوئيل ) وي ! دداسې جنګ ذكر نو دښتيا هم

تاریخ کې نسته او محمد هوتک غریب هم ددغه راز جگړې ادعا نه ده کړې .

دقلندر صاحب په بیان کې د« خونړی واقعې » ترکیب لږ څه غور غواړي دخونړی واقعې څخه یې مراد هغه پیښه ده چې دهغې په نتیجه کې گرگین ووژل سو او دحاجي میرویس خان په لاس زموږ هیواد دپردیو له تسلطه آزاد سو دا پیښه زموږ دگران هیواد په تاریخ کې یوه له ویاړه ډکه کارنامه ده چې داروانښاد غبار په قول « دافغانستان دراتلـــــونکې دولت دجوړیدو » هسته ( زړی ) یې کیښیښوو. د ( خونړی واقعې ) په ترکیب کې یو ضمني تاسف او دپیښې له وژل سوو کسانو سره دخواخوږی احساس پروت دئ . داچې موږ د ( قصه خوانی ) پیښې ته خونړی واقعه وایو ، په حقیقت کې ددغه ترکیب په استعمالولو سره موږ د واقعې له قربانیانو سره همدردي او د عاملینو په نسبت یې (چې پرنگیان وو) کرکه اونفرت څرگندوو. دحاجي میرویس خان په مشری ملي پاڅون

ته د قلندر صاحب په خوله خونړی واقعه ویل ، تصادفي

انتخاب نه دی ځکه ده دخپل کتاب په « وروميی خبري » کي

ویلي دي چي هرڅه یې « په دلیل کړي دي » ، ملي قیام ته د

خونړی واقعي نوم هم په دلیل ورکړه سوی دی . ګویا د ښاغلي

قلندرپه نظردپښتنو دغه ملي پاڅون یوه خونړی واقعه وه او

دګرګین وژل کیدل دتاسف ور عمل !

دعلیین مکان په برخه کي هم ښاغلي قلندر صاحب

اعتراض لري.دی لیکي « هم په دې لړکښې د خان علیین مکان

ترکیب دی چي محمد هوتک یې دخوشحال بابا او میرویس خان

بابا دپاره غلط استعمالوي دا غلط ترکیب زما دتحقیق مطابق

پښتو کښې له تولو نه اول افضل خان خټک په تاریخ مرصع

کښې د خوشحال بابا دپاره استعمال کړی دی . »

( ۱۳مخ )

دښاغلي قلندر د تحقیق جواب خو اروابناد علامه حبیبي

(د محمد هوتک یاد) په ۱۱۹ مخ کي ویلی دی . لوستونکي دي

یې هوريږ ولولي زما له پاره دحیرانتیا خبره بله ده ، هغه دا :
کله چې افضل خان په تاریخ مرصع کې د « علییون » پر ځای
« علیین » کاږي نو قلندر صاحب وايي « افضل خان که غلطي
وکړه نو تقاضا ئې بشري ده لیکن محمد هوتک دا غلطي څنګه
وکړه » دې ته وايي ( یک بام و دو هوا ) قضاوت ! کله چې
افضل خان علیین کلمه استعمالوي او په اصطلاح غلطي کوي
نو ښاغلی قلندر یې تقاضای بشري بولي خوچې محمد هوتک
بیا داکلمه استعمالوي ښاغلی معترض ورڅخه مافوق بشري
تقاضا کوي . عجب قضاوت ! آخرمحمد هوتک بشر نه و ،
که څه ؟ دا ولې نورو کسانو ته ښاغلي قلندر صاحب دلوریني
پلو ډیر پراخ خوروليږ دئ مګر محمد هوتک ته دومره
خپسمیدلیږ دئ چې دبشریت له قلمرو څخه یې باسي ! ضرور
څه خبره سته یا به « کوم خاص مصلحت » په منع کې وي !
زه دخپلو معروضاتو یوه برخه پر همدې ځای رالنډوم او
زیاتوم چې د پټه خزانه فی المیزان کتاب دراتلونکي نسل له

پاره یو گمراه کن اثر دئ ځکه هرچاته دکتاب دپاڼي پاڼي دکره

کولو او څیړلو نه امکانت سته او نه هم وخت کتاب خو ظاهرا

عمیقه لیکنه ښکاري او ډیر فریبنده عبارتونه او ترکیبونه لري

لوستونکی چي یې لومړی ځل ولولي پر مطالبو یې یقین راځي

مګر دا یقین به یې پر ناسمو احکامو وي دناسمو او تحقیقي

انحرافاتو اوږد لیست یې ښاغلي صمیم صاحب خپور کړئ دئ

دا لست نو هم اوږدیدلای سي

خپلي خبري دفتح خان بریځ دنکل په یوه ناره پای ته رسوم

اوردي وسي دبریځو په سپین ږیرو

مرور یې پخلا نه کړل لادلاسه وربسي یاغي ملکونه

داو زما دهغي لیکني یوه برخه چي د ( سپیدې ) مجلې

د دوهم کال ، دوهمي دورې په لومــــــړی ګڼه د (ښبرګولي –

چنګاښ ) ګڼه کي چاپ سوې ده ( ۱۳۷۰ هجري شمسي )

تر چاپ وروسته یې زما یو اشنا په یو لیک کي راته

ولیکل « زه چنداني ، په تیره بیا د علمي تحقیق اوڅیړني

په وخت کي مقدساتو ته عقيده نه لرم نوکه مي رشتيا پوښتي

پر پعه خزانه باندي مي د قلندر مـــــــومند په ليکنه ستاپه شان

خوانه ده بده سوې قلندر مومند هم يو محيرونکی اومحقق دئ ،

هغه هم دخپل نظر دابرازحق لري . . . البته ددې خبرو مخه مي

مراد دانه دئ چي زه له قلندرمومند سره په يوه عقيده يم بلکه

مطلب مي دادئ چي دتحقيق اوپلټني په وخت کي بايد سرحد

او مقدسات موجودنه وي . » له دې اشارو زما استنباط داسي و

چي ګويا موږ چي دپعي خزانې د اصليت په باب څه ليکو علت

يې دادئ چي ځينو اشخاصو ته مو د قدسيت درجه ورکړې ده

پر هغو باندي اعتراض راته دزغملو وړ نه دئ ځکه نو ليکني

کوو . البته موږ مقدساتو ته معتقد يو ، نه اشخاصوته . که ما

ددې خبري پروا کولای نو به مي د

( ع ) نوري په باب هغه محيرنه نه وای کړې چي ددې ليکني

په پای کي به يې ولولئ . دلته بايد دوه مطلبه سره ګډ نه سي

يو اشخاصو ته د قدسيت تر درجې پوري اهميت ورکول دي

اوبل دمحینو حقدارو پوهانو اومحققینو د کلونو کلونو بې

اسرې زیار اوکراو ستایل اودهغو تقدیرول دي که دا تقدیر

اوستاینې ته ځوک د قدسیت نوم ورکوي که بل څه ، دا راز

قدرداني د هر چا وظیفه ده او که څوک مقدساتو ته دعقیدې نه

لرلو په پلمه دمشرانو بې حرمتۍ ته ملاتړي نوبه ووایم چې دا

داسي رابانددي توره شپه ده علت یې دادی چې میرونه مو له

مراني سره یوځای وژلي دي دهغو کسانو بې حرمتي ته مو

ملاتړلي ده چي نیمه پیړۍ یې زما وستا د وطن ، ژبي ، فرهنګ

، تاریخ په څیرنه کي قلم چلاوه اوداقلم یې هغه وخت یې له

لاسه ولوید چي ملک الموت دمرګ پیغام ورته راوړی ، زه اونه

یې وروزلو ، لارولیکه به وید یې راوښوول مګر په پاداش کې

یې موږ پسله مرګه سوتي پر رااخلو او خدای مه کـــــره

(جعلکار و ګمراه کننده ) یې بولو ، دا دمیراني لار نه ده – زه

دا نه وایم چې داسلافو تیروتني دې سمي نه سي.دا تصحیح

زموږ تاریخي رسالت دی او که دخدای رضا وه پر دغه لار به

لو مګر مشر وکشرته به ګورو ، حق ومناسب به سنجوو ،
ګـــوی ومــــګـــوی بـــه ســــره بـــیـــلــــوو .

# هیواد ـ هواد

په دې برخه کې زما دلیکنې موضوع په پښه خزانه فی المیزان کې د « هیواد ، هواد » دمعنا اوتاریخي پس منظر په باب دځینو ځرګندوونو ځیړل دي . په نوموړي کتاب کې ددې کلمو دځیړنې له پاره ځلورشپېته مخه ورکول سوي دي ، خورادیر دیوانونه او کتابونه یې پرله اړولي دي چې په رشتیاسره ستونزمن کار دئ دکتاب لیکوال دنورو ځیړونکو کار اسانه کړئ دئ چې داسعی یې مشکوره ده . له دې ځلورشپېته مخیزې ځیړنې ځخه دا لاندې کوتلې خبرې راوزي :

ـــ زمــــوږ په تول کلاسیک ادب کې د ( هواد ) معنا « اِکیّ یوه » ده اوهغه ( لرې ، فاصله ) ده ؛

ـــ د ۱۳۲۰هجري شمسي کال ځخه مخکې پښتنو لیکوالو د ( هواد ) کلمه په ( وطن ) سره نه معنا کوله ؛

ـــ د افغانستان لیکوال چې د ( هواد ) لغت تــه اوس د ( لرې

، فاصله ) معنا کازي دا دېاغلي قلندر صاحب دمقالې له چاپېدو

(۱۹۷۲م ) وروسته رواج سوې ده او هغه هم له دې امله چي

دپټې خزانې د «جمليت » د اثبات مخه يې نيولي وي .

هواد ـ هيواد زموږ په کلاسيک ادب کي هم د ( وطن

، ملک ) اوهم د ( ليري ، فاصله ، بيديا ) په معنا راغلئ دئ

دالغت محو معناوي لري اوپه پښتو او نورو ژبو کي ددا راز

لغتونوموجوديت يو طبيعي جريان دئ مثالونه يې لسګونوته

رسيږي . له بلې خوا لکه څرنګه چي ادعا کيږي داکلمه

پښتوژبې ته له عربي څخه راننوتې نه ده ، بلکي دپښتو ژبي په

بلې اريايي ترلې ژبه کي يې نسبتا ورته شکل Heimat سته

(۱) دعربي د (حواذ ) او دپښتو( هواد )تر منځ دشکل معنا

ورته والی دسړي ذهن ته هغه مشابهت تداعی کوي چي د

انګريزي ژبي د Meaning او عربي ژبي ( معنی ) ترمنځ

سته . داراز مشابهتونه يې له تصادفاتو بل څه نه سو بللای .

د ( هواد ) په باب دپټه خزانه فی الميزان ښاغلی مولف له

يوه اوږده بحث وروسته دې نتيجې ته رسيدلی دی چې « تولوکلاسيکي ليکونکيو د ( هواد ) اِکّی يوه معنی ( لرې ، فاصله ) کړې ده . » (۲)

د« اِکّی يوه معنی » په نهايي حکم کې دنوروخبرو ځای نه پاتيږي اولوستونکی دا فکر کوي چې په رشتيا سره به زموږ په تول کلاسيک ادب کې يو مورد هم پيدا نه سي چې هلته دې د هواد معنا له ( لرې ، فاصله ) پرته په بله معنا استعمال سوی وي موږ به دهاغلي مولف خپل راوړي مثالونه چې همدا نهايي فيصله يې ځني را ايستلې ده ، وڅيړو که څه هم دامثالونه خورا ډير دي خو زه به له اختصاره کار واخلم . دا مثالونه دری برخې دي ـ يوه يې هغه ده چې هواد يې د( لرې ، فاصله ) په معنا اخيستی دی او بله يې هغه برخه ده چې هواد يې هم د (لرې ، فاصله ) په معنا او هم د( وطن ) په معنا راوړی دی اودريمه يې دهغو مثالو برخه ده چې هواد يې يوازي د ( وطن ) په معنا استعمال کړی دی بايد ووايم چې په دې راوړل سوو

بیلګو کې ښاغلی مولف ځای ځای دوه زړه دي او خپل دوه زړه توب یې پټ کړي هم نه دي ، مګر له تذبذب سره سره یې خپله وروستی پریکړه صادره کړې ده . بیلګې یې په ګډه ولولو :

په پټه خزانه فی المیزان کې درحمان بابا (۱۱۲۸ق مر ) یو بیت ستنه :

سبازیری دوصال په مهجور کاندي
د هواد خبر موندنه شي له سیاحـــه
( ۱۱ مخ )

( له دې وروسته چې له بیت سره نومره لیکل سوې وي هغه دپټه خزانه فی المیزان دمربوطه مخ عدد دي )

دښاغلي مولف په نظر په دې بیت کې د هواد معنا ( لرې ، بعیده ) ده خوکه لږځه دقیق سو او د مهجور کلمه په پام کې ونیسو ، ویلای سو چې شاعر دهغه چا حال بیانوي چې مهجور دي او مهجوریت به له وطنه پرته له بل کوم ځای ځخه وي ؟ پردیس له ( وطن ) ځخه مهجور دي ، ( سبا) دوصال

زیری پر کوي ځکه دوطن حال له سیاح د ( سباباد ) ځخه

معلومیږي که هیودا په (فاصله ) معنا کړو( دفاصلې خبر مونده

شي له سیاحه ) به یو بیخونده مطلب وي که یې په ( لیري ځای)

معنا کړو نوله وطن پرته به بل کوم لیري ځای مقصد وي ؟

دخوشحال بابا دې بیت ته ځیر سئ

د هواد یاران مي هــــــر زمان یادیږي

چي یې مخ په خوب کښې ووینم وویارم

( ۴۷مخ )

ښاغلی مولف ددې بیت د توضیح په ترڅ کي وایي

« داغزل لکه دنیر غزل په هندوستان کښې لیکلې شوې وه

اوځکه یې دا معنی واخستلې شوې چي ګُندې خوشحال بابا د

(هوادیاران ) د(وطن یاران ) ګڼي - حال دادی چي دلته هم د

(هواد ) مطلب ( لرې ) ، ( په فاصلې ) ، ( بیل ) ده . اوکه

داسي نه ده نو سوال کیږي چي مرحوم حبیبی صاحب په دې

دومره اسان مفهوم ولې ونه رسیده . »

تاسي محترم لوستونکي د ( هوادياران ) مخفه ( په فاصلي ياران ، بيل ياران ) جوړکړی ــ وګوری چي دخوشحال بابا شعر به موخنلنی کړی نه وي . دا چي اروا ښاد حبيبی صاحب په دومره اسان مفهوم ولي ونه رسيده ، دښاغلي مولف اشاره دنادرو لغاتو هغه لست ته ده چي علامه حبيبي د (خوشحال ختک مرغلري ) او ( دعبدالقادرخټک ديوان ) په پای کي راوړی دی ـــ بايد ووايم چي علامه مرحوم مفهوم ته رسيدلی دی چي تفصيل به يې وروسته راوړم ، مګر دمفهوم نه رسيدل لغت له ( نادرتويه ) نه باسي - نن که دالغت عام سوی دی ، پنځوس کاله مخکي په رشتيا سره نادر لغت و د عبدالقادرخـــــان خټک ديوان په ۲۳۲ مخ کي د ( پښتو نادرلغات ) تر سر ليک لاندي لولو : مخنی پښتو نادر لغات او کلمات چه په دغه کتاب کښ راغلی دی لاندی ليکل کيږی چه پښتانه استفاده مخنی وکړی . . . . : د هـــــواد کلمه د دې کتاب په ۲۳۷ مخ کي ثبت ده . ددغه لست لغاتو ته ( حل

طلب ) هم نه دي کښل سوي يعني حبيبي صاحب په مفهوم رسيدلی دی يوازې يې نادر لغت ګڼلی دی او پر نادرتوب خو يې څوک انکار نه سي کولای . دابل بيت به هم ولولو

هغه يار چي له ما لرې په هواد دی
هميشه راته حاضر دزړه په ياد دی

( ۴۸مخ )

دلته ښاغلی مولف دهواد په معنا کي زموږ سره په يوه نظر دی او وايي چي « په وړومبی نظر کښې ( هواد ) د ( ملک ) په معنو کښې ښکاري » خو اعتراض يې دادی چي « په دې دومره اسان مطلب حبيبی مرحوم په اول ځل ولې پوه نه شه » زه يې له « ولې پوه نه شه » يا « پوه شه » سره کارنه لرم زما مطلب دښاغلي مولف خپل اعتراف دی چي په اول نظر( هواد ) د ( ملک ) په معنو کي ښکاري . آيا ددغه راز تذبذب په حالت کي د « اکې يوې معنی » فيصله دتامل ور نه ده ؟

دعبدالقادرخان دا بيت هم دمثال په دول راوړل سوی دی

چې په وقت دتلو راتلوکا چغارونه

د هواد یاران را یاد زاني اکثر کا

( ۴۸مخ )

ددې بیت په توضیح کې ، ښاغلی مولف دخوشحال بابا د مخکینې بیت په قضاوت کې تکنی سوی دی او وایي «دخوشحال باباپه سلسله کښې خو ددې لفظ په حقله غلط فهمي څه بنیاد لري ځکه چې په هند کښې گرفتار او نظربند پاتی شوی وه ـ خو عبدالقادرخان په دې کښې د ( هـــواد ) معنی (وطن ) کول څه تاریخي جواز یا بنیاد لري چې دغلط فهمی عمارت پرې بناه کړی شي ؟ »

له دې توضیح څخه ځرگندیږي چې دخوشحال بابا په مخکینې بیت کې د ( هواد ) معنا ( وطن )کیدلای سي اوښاغلی مولف جواز ورکوي ! خو دده په نظر دعبدالقادرخان په بیت کې دهواد یاران څخه د وطن یارن معنا اخیستل ځکه بنیاد نه لري چې ددغه بیت دویلو پر وخت شاعر « گرفتار او نظربند » نه و

جالب تحلیل ! دا خبره پر ځای ده چې دشاعر مغز اوذهني
حالت دتولنیز چاپیریال محصول دئ او په شعر کې دماحول
اغیزه لیدل کیدلای سي ، خو داحکم دومره عام هم نه دئ چې
که شاعر د وطن یاد کاوه ، ضرورېه گرفتاراونظربند وي په
دې حساب که یې د شرابو لفظ راوړئ و ، حتما به شرابي وي
ـ که یې دښکار یادونه کړې وه ، هرومرو به ښکاري وي ـ که
دحسد په باب ژغیدلئ و ، خامخا به حاسد وي ـ که یې دیو
ښار یا یو وطن نوم اخیستئ و ، ضرورېه یې لیدلئ وي یا
ورغلئ وي . د عبدالقادر خـان په تیر بیت کې د ( هواد یاران)
د ( وطن یاران ) کیدلای سي زه کومه غلط فهمي نه پکښې
وینم که دسوتي په زور ځوک بلـه توجیـه ورکـوي ، دانـو
علیحده خبره ده . دعبدالقادرخان دا بل بیت در واخلئ

په تحقیق چې نیم دیدن ورلره یوسي
له هیواده چې یار وکاندي په یارخط
( ۴۸مخ )

شاعر دپردیسی دحالت په باب یوه کلیه بیان کړې ده او حتمي

نه ده چي پخپله یې هم باید پردیس وبولو. د قاسم په دا لاندي

بیت کې هم دشاعر له خوا دیو پردیس حالت بیان سوئ دئ چي

دوطن اشنا یې یادیږي اوله دیر یادیدلو یې زړه خوږیږي

نن مي څه رنگ هوادی اشنا یادیږي

چي دیر دیریې یادوم زړه مي خوږیږي

( ۵۱ مخ )

ښاغلی مولف گوري چي په پورتني بیت کې د

(هوادی ) معنا ( وطنی ) کیدلای سي مگر دی خو ددې معنا

تسلیمیدوته تیار نه دئ څکه نو په یو ماهـــرانه شیرغلط ور

څخه تیریږي او لیکي : « دلته د ( هوادی ) لفظ ښکاره معنی

نه ښندي . . . . » یعني داچي هوادي لفظ کې د ( لرې ،

فاصله ) مفهوم لږڅه پیکه ( تت ) ښکاري او ( وطني ) معنا

ښه ورسره نښلي. اوس که دا لفظ په همدې ښه یو ازې دقاسم له

خوا کارول سوئ وای خو موږ به داستثناء په سترگه ورته

کتلي وای ، مگر دنورو شاعرانو له خوا په عین معنا ددې لفظ
استعمال بې له استثناء باسي او ځوک ویلای سي چې ( هوادی)
په ( وطني ) سره معنا کیدلای سي.دا نورو مثالونوته ځیر
سئ .

هجري وایي :

اشتیاق د هیوادي اشنا غالب شي
په خاطرمې لاثقیل دهجرباد دی
( ۵۲ مخ )

علیخان وایي :

هوادی اشنا زما چې تر ځنګ کښیناست
دا په ما باندې خدائي کړی لوی کرم دی
( ۲۱ مخ )

بل ځای وایي :

یا وفا په هیوادی لالی کښې نه وه
یاد غره په اور لاسونه نه تودیږي
(۶۲ مخ)

معاذالدين خټک وايي :

هوادی اشنا کا خپل معاذالدينه

په بدخوابه خنداکبر اودماغ کرم

( ۲۸مخ )

محمدي صاحبزاده وايي :

تسلی د هيوادی ور باندي کيږی

جمع زره کا محمدی پريشان کاغذ

( ۷۰مخ )

که د قاسم په بيت کي ښاغلي مولف ته د(هوادي )معنا

«ښه نه ښکاريدله ؛ نو په دې پورتنيو بيلگو کي خو ( هوادي )

لفظ دقاسم په شان کارول سوئ دئ دلته په کوم جواز دفاصلې

معنا ورځخه اخلي ؟ دلته يې بايد هم ويلي وای چي « ښکاره

معنی نه ښندی . »

سيد تقويم الحق کاکاخيل دعليخان ديوان ، دوهم چاپ

دوپنځوسم مخ کې په یوه بیت کې د ( هیواد )لفظ ته په واضح
دول ( لرې وطن ) کښلی دی ، مګر د پټه خزانه فی المیزان
ښاغلی مولف وایي « ګویا د تقویم صاحب په رائې کښې هم
دشعر مفهوم کښې د ( بُعد ـ لرې والی ) مفهوم ضروری دی .»
لرې والی یا نزدې وای خودلغت معنا نه وربدلوي ـ دتقویم
صاحب په نظر د ( هواد ) معنا ( وطن ) ده ـ مګر لرې وطن .
ښاغلی مولف درحمان بابا او محمدي صاحبزاده دوه بیته
چې دمعنا په لحاظ سره ورته دي ، په مثالو کې راوړي دي او
داسي یې ښودلي چې ګویا دشعر مطلب بالکل یو دی.درحمان
بابا بیت داسې دی :

سبا زیری دوصال په مهجور کاندی
د هواد خبر مـــونده شي له سیاحه

دمحمدي صاحبزاده بیت :

د هغه اشنا خـــبرپـــوښتم لـــه باده
او د لرې ملک حال غُښت شي له سیاحه
( ۵۶غ )

دې بیتو ته دهاغلي مولف تبصره دا راز ده ! د

محمدي صاحبزاده له دې شعره صفا ثابتيږي چې په

کومومعنوکښې رحمان بابا هواد استعمال کړی دی هم هغو

معنو کښې صاحبزاده محمدی لرې استعمال کړی دی . ! زه

حیران یم چې ښاغلی مولف ولې دغه راز استنتاج کوي ؟ راسئ

بیتونه تونه تونه کړو ، خبره سپينيږي په یوه ستون کې د رحمان

بابا د بیت اجزاء او په بل کې دمحمدي صاحبزاده دا ایږدم -

تاسې وګورئ چې محمدي صاحبزاده د ( هواد ) لفظ په کومه

معنا استعمال کړئ دئ

| رحمان بابا | محمدي صاحبزاده |
| --- | --- |
| د هـــــــواد | د لرې ملک |
| خبر مونده شي | حال غبنت شي |
| له سیاحه | له سیاحه |

زما په خیال خبره بیخي روښانه ده نه نورو قاموسو ته

ارتیا سته نه نورو مثالو ته . محمدي صاحبزاده د ( هواد )
معاوضه په ( لرې ملک ) کړې ده یعني د ( هواد ) په لفظ کې
د ( ملک ـ وطن ) مفهوم سته او د سیدتقویم الحق کاکاخیل
هغه معناچې دعلیخان په دیوان کې یې کړې ده ، تشه هوایي
خبره نه بلکې مستنده او مستدله ده .

په نثري بیلگو کې هم هواد د وطن په معنا راغلی دئ
دفوائدالشریعه هغه اقتباس ته خیر سئ چې ښاغلي مولف دخپل
کتاب په ځلورنوي یم مخ کې راوړی دئ

« خدای تعالی به په ملایکو فخرکاندي چې زما بندگانو ته
وگورئ چې له هواده گردوهلی پریشان حال په خواری زما
کورته راغلی . »

حاجیان دخدای کورته له خپلو وطنو ځخه ورځي او په پورتني
اقتباس کې له ( هواده گردوهلی پریشان حال )یعني ( له خپل
وطنه گرد وهلی پریشان حال )

له تیرو ځرگندونو ځخه به داخبره سپینه سوې وي چې

د ( هواد ) يوه معنا ( وطن ) ده او پر دې حکم باندې زموږ

سره دپښتو کلاسيک ادب ملاتړ هم سته دا چې ښاغلی

قلندرصاحب د ( وطن ) معنا په وچ زور ځني باسي ، بايد

عرض کړم چې سرزوري کوي .

---

اوس راځم د ( هيواد ) کلمې

## تاريخي پس منظر ته

ښاغلی قلندر صاحب په دې برخه کې وايي « ددې توري

په حقله يادساتل په کاردي چې د ۱۳۲۰ هجري شمسي کال نه

اګاهو ددې توري معنا پښتنو ليکونکيو هغه نه کوله کومه چې

اوس په افغانستان کښې رائجه ده اودافغانستان دليکونکيوپه

تتبع کښې يې زموږ دليکونکيو يوه برخه کښې هم رواج

موندلی دی » (۳)

بل ځای وايي « حالانکې داښاغلی ( مطلب يې افغاني ليکوال

دي . معصوم ـ هوتک ) دا هډو ثابتولی نه شي چې زما دمقالې

نه مخکښې دوی چرته یو غل هم ددې لفظ معنی له ( وطنه )
بغير بل څه کړې وي . . . . . ( ۴ )

ددې قاطع حکمونو په مقابل کې خوبه زه دښاغلي مولف
تر مقالې ۴۰ کاله مخکې يوه حواله ورکړم چې افغاني ليکوالو
د ( هواد ) معنا له ( وطنه بغير ) په ( فاصله ، لیري ،
بيليا ) سره هم کړې ده نورنو ددوی خوښه چې خپل حکم
ماتوي که نه .

دښاغلي مولف ياده سوې مقاله دده دخپلې ادعا له مخې د
پښتو مجلې د۱۹۷۶ ع کال دمارچ په ګڼه کې چاپ سوې ده .
(۵) تردې مقالې څلويښت کاله وراندې افغاني ليکوالو په
سرکې علامه حبيبي دپښتو ادبي نهضت په بهير کې دطلوع
افغان جريدې له لارې يو لړ اکاديميکي هلې ځلې پيل کړې وې
دپښتو نادر کتابونه يې لټول ، کلاسيک متون يې خپرول ،
دپښتو ادب تاريخچه يې ترتيبوله ، داملايي يووالي له پاره يې
تلاښ کاوه ، دنادرو پښتو لغاتو معناوي يې له پښتنو څخه

پوهنتلي اونور ـ دالري دطلوع افغان ددیارلسم کال له

محلیرویشتمي گڼې محخه ( ۱۹۳۲ع کال دمارچ ۱۴ ) د یوې

مقالې په خپریدلو سره پیل سوې وه چې عنوان یې ( له

پښتنو محخه ادبي پښتنه ) و په دې مقاله کې یې دمیانعیم متې زي

ددیوان موندلو زیری ورکړئ او دده په دیوان کې دځینو لغاتو

( مالن ، داون ، بالن ، سلون . . . . . ) دمعناوو په باب

دپښتنوپوهانو نظر غوښتل سوئ و ددې پوښتنوپه جواب کې

مرحوم حاجي ولی محمدخان مخلص او اروانباد عبدالطیف

هوتک خپل نظر ورلیږلئ او د عبدالطیف هوتک جواب چې په

زیاترو برخو کې د حاجي ولي محمدخان مخلص له نظر سره

ورته و ، دهمدې کال په اووه ویشتمه گڼه کې خپور سوئ دئ

ددې جوابیه مقالې په تعقیب اروانباد قیام الدین خادم هم خپل

نظر وراندې کړئ دئ ( ۱۳ کال ۲۸ گڼه ) وروسته یې د ۱۴ کال

۷ گڼه کې د"پوښتنه گرویژنه" لړۍ شروع کړې اود پښتو دځینې

کلماتو تحقیق تر سرلیک لاندې یوه بله مقاله خپره سوې ده

ددې مقالې لومړی لغت هواد دئ په مقاله کې چې د اروابنـاد

حبیبي صاحب په قلم ده (۲) ویل سوي دي ؛ دپښتنو زړو

ادیبانوپه کلام کې د هواد کلمه ډیره مستعمله ده په بعضو

قلمي اثارو کې هې ته زیر هم ورکړه سوی دی ، پر وزن د بلاد ،

ماچه فکرپکښې کړی دی ، دا کلمه به یا په معنی د وطـــن

او مینې وی ، یا به د بیلتون ځای اومنفي معنی ورکوی . . . ؟

بیا یې نو د پیرمحمد کاکړ ـ شمس الدین کاکړ ـ میانعیم

خلیل له اشعارو څخه مثالونه ورکړیدي ( دلته باید داخبره

وکړم چې د شمس الدین کاکړ له اشعارو څخه یې هغه بیت هم

راوړی دئ چې د پټه خزانه فی المیزان په اتیایم مخ کې درج

اوښاغلی قلندرمومند پرشکمن دئ چې دابه هم په جعلي دول

ناسم ثبت سوی وي ځکه دده په نظر؛ دشمس الدین دیوان دپټې

خزانې دچاپ کیدلو نه پس منظر عام ته راغلی دی ځکه نوقابل

تمسک نه دی ؛ دشمس الدین کاکړ دا بیت د پټې خزانې تر

چاپ اته ، نهه کاله مخکې منظرعام ته راغلئ و . ) د علامه

حبيبي په پورتني نظرکي وينوچي د ( هواد ) معنا پر ( وطن او

مېنه ) برسيره ( منفيٰ ) هم راتلای سي اومنفیٰ ( په الف

مقصوره ) په قاموسونوکي په ( نيست ونابودشده ، دورکرده

شده )معنا سوی دئ ( وگوری غياث اللغات ـ افغان قاموس )

دانظر دښاغلي قلندر تر اعتراضي مقالې ځلويښت کاله مخکي

ورکړه سوی دئ .

دطلوع افغان دې پوښتني ته نورو ښاغلو پښتنو هم

جوابونه ليږلي دي زه بې په دې نيامت راتقلوم چي که نورڅه نه

وي ، دومره گټه خوبه ولري چي درانه لوستونکي دې بهيرته

متوجه سي اونوري څيړني پکښې وکړي.جوابونه د عبدالحی

لودين ، لعل محمدکاکړ ، ملاسيدمحمدکاکړ ، عبدالروف

علیزی د پاشمول ( اروابناد بينوا ـ م.ه) ، غلام حسن

خان صافی ، قيام الدين خان خادم ، امين الله خان زمريالی او

وزير صاحب محمدگل خان مومند دي .

لومړی جواب د « جناب عبدالحی خان لودين د قندهار»

دئ چې دطلوع افغان د محورلسم کال په دیارلسمه گنه کې خپور سوئ دئ.دی لیکي :

هواد : « ولایت چه پښتنو مغفن ( ولات ) کړی دی ،

زه طوطی دبل ولات سبا به ځمه »

جناب غلام حسن خان صافی له لغمانه جواب ورته لیږلئ او دنورو لغاتو دمعناوو په لړکې یې د هواد په باب خپل نظر داسي وړاندې کړئ دئ :

« هواد : درې کاله دمخه ماپه کابل کې د یوه سپین ږیری څخه چه دکعواز سلیمانخیل و ، دوې نادری کلمې اوریدلې وې ، یو ( ونډل ) په معنا د یادولو بـــل ( هیوات ) یعنی وطن.

ځکه چه د ویونکی لهجه دغسې وه ـ ما هیوات ولیکلی مگر چه شاعرانو ( هواد ) لیکلی دی ، درست دی . » ( ۱۴کال ۱۴گنه )

په همدې گنه همدې جواب کې یوبل پښتانه له کابل څخه خپل نظر ورلیږلئ چې نوم یې ښوولئ نه دئ.دې پښتانه

خورا ډیر لغتونه معنی کړي دي چي وروستی لغت یې هواد دئ
دی لیکي :

« هواد : په دې لغت پسي مي ډیري پوښتني وکړې د
غزنی او جنوبي وخواته لکه چه مستعمل دی په پښتو کي یو
متل دی ( هلته به دریادسم ، چه یامر سم ، یاپربل یواد سم )
نودالغت خاص دوطن په معنادی مګر هواد به نه وي ، یواد به
وي ولي چه په محاوره کي دغسي دی »

جناب مولوی قیام الدین خان خادم له کابله خپل نظریات
ورته لیږلي چي په ( ۱۴ کال ۱۵، ۱۶، ۱۷، ۱۸ ګڼو ) کي خپاره
سوي دي اروابښادخادم صاحب تر اوږدو تمهیدي خبرو وروسته
دمشخصو پوښتنو په باب خپل نظر داسي بیان کړئ دئ

هواد : دالغت زماغوږوته په زور رسیدلی دی ، تاسي وائی
چه په ځینی کتابوکښې ئې ورته زیرلیکلی دی ، ودي سي چه په
زور او زیر دواړو راغلی وی ـ دالغت دوه معنی لری (۱) وطن
اومینه (۲) پریه ملک بیدیا لکه چه ستاسی په مثالو کښې په درې

ځایو کښی جخت دوطن په معنی مستعمل دی :

(۱) موږ راغلی طوطیان دبل هواد یو ....

(۲) موږ له هواده تنها راغلی یو ....

(۳) په هوا می دکشمیر دتورو سترګو

له زره ویاسته نیازمن د بل هواد

په دې لاندې درې ځایوکښی بې شکه د ( بیدیا ، دباندې اوبل ملک ) په معنی دی :

(۱) بدنصیب ناسازی چاری په ما وکړې

له نزدو بې لیری لیری په هواد کړم

یعنی دنزدو یارانو نه بې په بیدیا اوبل ملک وخورځولم . (۲)

ځان جهان می تمامی له یاده ووت

په هواد تللی اشنا می راپه یاد شو

یعنی مسافر اشنا چه له وطنه مسافر او په بل ملک او بیدیا دی ،

هغه می راپه یاد شو اوهرڅه می هیرشوه . (۳) حمیدبابا هواد په

همدغه معنی دخپل دیوان په ۹۵ مخ کښی داسی راوړی دی :

بد نصیب لـه نزدې یاره

ځرنګ لري په هواد کرم

یعني په بیدیا یې کرم .»

دراته لوستونکي خومتوجه دي چې دانظر دپټه خزانه فی

المیزان دښاغلي مولف ترمقالې ځلو ښت کاله مخکې ورکره

سوی دی .

ښاغلي امین الله خان زمریالي له کابله ورته کښلي دي :

« هواد : ځنګه چه تاسو د هې په زیرسره لیکلی دی

صحیح دی زما په فکر هواد بلا استثنا مطلق وطن ته وایی که

خپل وي یا پردی .نه په معنی د بیلتون یا فراق . . . . .»

دپوهنتنو او ګرویږنو دوهمه دوره د ځورلسم کال له نهه

ویشتمې ګټې ځخه پیل کیږي او په دې دوره کې دخوشحال له

کلیات ځخه نادر لغات مناقشې ته وراندي کړي دي چې دا وار

یې جوابونه له حیدراباد دکن ځخه دجناب مولوی ابوالوفا

صاحب قندهاری په قلم لیکل سوي دي اودځورلسم کال په

شپږدیرشمه گڼه کي دا یادونه هم سوې ده چي « د جــــلال اباد جریده شریفه ( اتحاد مشرقي ) هم په یوه شماره کښ زموږ محیني جوابونه لیکلی دی . »

له دې اوږده بیان او نقل قولونو څخه مي دوې خبري مطلب دي :

اول ـ دهواد پر کلمه او نورو لغتو باندي لا هغه وخت پوره مناقشي سوي وې چي نه یعه خزانه میدان ته راوتلې وه اونه دښاغلي معترض اعتراضونه .

دوهم ـ دپعه خزانه فی المیزان دښاغلی مولف ددې ادعا په مقابل کي زموږ دمحترمو مشرانو نظرېي وراندي کول دي چي وایي « حالانکی دا ښاغلی دا هدو ثابتولی نه شي چي زما دمقالې نه مخکښې دوی چرته یو محل هم ددې لفظ معنی له وطنه بغیر بل څه کړې وی . »

په نتیجه کي وایم چي لومړی ارواښاد علامه حبیبي دهواد کلمې یوه معنا ( منفیٰ ) یعني ( دورکرده شده ) کړې ده اوهغه

هم دښاغلي معترض تر اعتراض مخلويښت کاله دمخه ، اوبل اروابناد مولانا قيام الدين خان خادم چي دپښتو ادبي نهضت له قافله سالارانو څخه و ، د هواد معنا له ؛ وطنه بغير؛ ، ( پريه ملک ـ بيلديا ) کړې ده څرنګه چي ددې مناقشې د برخه والو جمهور نظر د وطن معنا پر خوا و څکه نوداکلمه وروسته په لراوبرپښتنوکي د ( وطن ـ مملکت ) په معنا رواج سوه . ددې مناقشې په ښوولو سره دښاغلي قلندر مومند دا ادعا باطله سوه چي ګويا افغاني ليکوال دده تر مقالې وروسته د هــــــواد معنا له ؛ وطنه بغير ؛ ، ( لرې ـ فاصله ) او نور تسليموي او ترمخه يې دا کار نه کاوه .

## ماخذونه

(۱) ـ وفا ـــ ۳۱ ګنه ـــ ۵ مخ ـ دوهم کال

(۲) ـــپه خزانه في الميزان ـ ۱۰۳ مخ

(۳) ـ همافه اثر ۴۲ ـ ۴۳ مخونه

(۴) ـهمافه اثر ۱۰۵ مخ

(٥) ــ هماغه اثر د ۱۴۱ مخ سلمه حاشیه

(٦) ــ بې نومه مقالې دمدیر په قلم وي ـ دا مقاله هم بې نومه ده
ځکه ما دعلامه حبیبي په قلم لیکل سوې وبلل .

# د ( ځ ) توري تاریخي سوابق

## په پټه خزانه کې ددغه شکل استعمال د قلماوو پیروي ده

دپښتوژبې په اوسنی الفبې کې نهم توری ( ځ ) دی چې د (چ ) او (ځ ) ترمنځ موقعیت لري . بر پښتانه ( د ډیورند دکرښې ها خوا ته میشته پښتانه ) یې (ځیم - زیم ) بولي دا ږغ په نورو هندواروپایي ژبو کې هم سته او ګرافیمي بڼه یې دنورو ږغونو په شان دتاریخ په سیر کې یو راز نه ده پاتې سوې.

په روښاني الفبې کې یې موقعیت د دال او ذال تر منځ دی او شکل یې ډ دی یعني دال ته یې لاندي تکی ورکړی دی . په خوشحال خاني لیکدود کې یې دجیم تر تکي لاندي همزه کیښې او د (ځ ) ږغ یې په انځوراوه په دې شکل ( ځ ) .

اخوند درویزه ننګرهاري رحـــــــمه الله علیه (۹۴۰ ــ ۱۰۴۸ ق ) د(ځ ) او( ځ ) فرق نه دی کړی او دواړه

يې په (غ )سره ښودلې دي چې دې عنعنې وروسته هم دوام

موندلئ اوپه زياترو پخوانيو متونو کې د دغو دوو تورو توپير

نه دئ سوئ (غاى )او ( هيغ ) يې دواړه په ( غ ) کښلې دي (۱)

په افغانستان کې د پښتومرکې په خپرونو کې د (غ )

له پاره د (ږ ) به غوره وګڼل سوه يعنې جيم ته يې پر سرټکی

ورکاوه . دطلوع افغان په نشراتو کې هم داشکل تر يو زر و

دريې سوه اووه لسم هجري شمسي کال پورې مروج و چې

وروسته يې د (غ ) شکل غوره وباله تفصيل به يې وروسته

وکاږم وزيرصاحب محمدګل خان مومند ( ۱۳۴۲ش مر ) د

(غ ) له پاره دا اوسنی شکل خوښ کړ او عام يې کړ او د

زنځيرى د فاضل مولف خبره ؛ د زنځيري ليکدود شکل يې

راژوندی کړ . ؛ (۲)

په پټه خزانه کې د غ توری په اوسني مروج شکل راغلئ

دئ چې دپټه خزانه فی الميزان د فاضلي مولف په نظر دجديدي

املاء نخبه ده اودېغي خزانې ؛ جدیدیت به اثباتیږي . په دې برخه کې په هغه قول استناد سوی چې دخیرالبیان په ؛ عکسي ایډیشن ؛ کې ( د خیرالبیان لیک دود ) تر سرلیک لاندې چاپ سوی دی او دهغه له مخې ګویا ؛ د(ځ ) اوسنی مروج شکل چې د(ح )پر سرېږي همزه کېښلی دی دوزیرمحمد ګل خان مومند ایجاد دی چې وروسته عام سو او په لروبرپښتونخوا کې یې رواج وموند ؛ پر دې قول داسې استنتاج سوی دی چې ؛ پټه خزانه دمحمد ګل خان مومند رح دسن شعورته درسیدلو نه پس ته دور کښې لیکلی شوی کتاب دی او عکه نو داسروپ دروغ دي چې دا کتاب په ۱۳۰۳هجری کښې لیکلی شوی دی." (۴)

زما دڅېړنې له مخې د(ځ ) اوسنی مروجه بڼه دوزیرمحمد ګل خان مومند ایجاد نه دی او زماسره د وزیرصاحب مرحوم تر زیږیدو شل کاله مخکې د (ځ ) توري داوسنې شکل چاپي اسناد سته چې خپله څېړنه

درنو لوستونکوته وراندي کوم .

د (ځ ) توري په باب دطلوع افغان د ۱۳۱۷ش کال دحمل د اووه ویشتمي نیټې په گڼه کې لولو « دا شپږ کاله چه طلوع افغان پښتو سوی دی ، موږ یو دول املاء چه پښتو مستنده املاء ده ، غوره کړې ده ، مگر قدماو دپښتو مخصوص حرف (ځ ) په دې شکل هم لیکلی دی (ځ ) . ځکه چه موږ داملاء دتوحید او یووالی پرخوا یو اوهرکله موږپه دې باب کښ لیکل او ویل کړي دي ، نوددې دپاره چه په خپله وینا موږ لمری کړن کړی وي اوس غواړوچه وروسته تردې (ځ )داسی ولیکو ځ . .

. . » په دغه کال وزیرمحمد گل خان مومند « دپښتو ژبې لیار »

اوترهغه یوکال دمخه یعني په ۱۳۱۲ ش کال یې « پښتوسیند »

چاپ کړی دی دپښتو الفبې ځینو ږغونونه یې په همدې اثارو کې خاص شکلونه پیشنهاد کړي او تاکلي دي زما په فکر ښایي دطلوع افغان په دې اقدام کې به دوزیرصاحب مرحوم غوښتنه بې اغیزې نه وه ـ خو په پورتني عبارت کې چې داروابښاد

علامه حبيبي په قلم ليکل سوی دی د « قدماو » کلمه په دې باب

يوه اشاره ده چي داشکل نوی ايجاد نه دی همدا زما دنوري

څيړني محرک سوه په دې برخه کي مي لومړی کتاب "لغات

افغاني" وکوت چي دارواښاد سيدراحت الله زاخيل ليکنه ده دا

کتاب که څه هم زما سره يې بشپړه نسخه سته خودزياترو نورو

پيښورچاپ کتابو په شان دچاپيلو نيمه نه لري مگر واضحه ده

چي دوزيرمحمدګل خان دپښتو سيند او دپښتو ژبي ليار

ترچاپ دمخه خپورسوی دی علامه حبيبي "دخوشحال خټک

مرغلري" کي دارواښاد راحت زاخيلي همدې کتاب ته حواله

ورکړې ده . (۴) دخوشحال خټک مرغلري د يوزر درې سوه

اووه لسم کال په جوزا کي ( می ۱۹۳۸م ) په کندهار کي

چاپ سوی دی (۵) اوپه دې وخت کي لغات افغاني دڅيړونکو

ديوه ماخذ په توگه ترکندهاره هم رسيدلی و په لغات افغاني

کي د( ځ ) توری په همدې اوسني شکل راورل سوی دی

اوداحکم چي دا اوسنی شکل دوزيرمحمد ګل خان ايجاد دی

تر پوښتني لاندې نيسي.البته دا خبره له امکانه ليرې نه ده چې
اروابناد وزيرصاحب به له پښتو سيند او دپښتوژبې ليارپرته په
نورو ليکنو کې داشکل ايجاد کړئ وي مگر ددې امکان
داثبات له پاره موږ ليکلی سند نه لرو .

دوهم کتاب مې دابوسعيد فضل احـــــمدخان اثر( گل
کوهې ) يا ( دغره گل ) وکوت . ابوسعيد فضل احمد خان
دپيښور دمردان دسردهيرې کلي يو حساس اوپرپښتو او
پښتونولي مين پښتون و . گل کوهي يې د۱۹۳۰م کال
(۱۳۰۹ش ) په جنورې کې دبمبئې په خلافت پريس کې دافغان
جنرل قونسل مرحوم غلام احمدخان په همت چاپ کړئ دئ
غلام احمدخان دسردارعبدالقدوس خان اعتمادالدوله له
زامنوڅخه دئ لوی استاد علامه حبيبي داروابناد عبدالهادي خان
داوي ( ۱۳۲۱ش مر ) له خولې ليکي چې ؛ غلام احمدخان
دبديع ذوق څښتن و په دري ژبه يې روان نثرکيښ اوپه دوهم
مشروطيت کې يې ښه ونده درلوده . ؛ (۲)

گل کوهي دوزیرمحمد گل خان تر لومړي اثر اووه کاله

دمخه او تردوهم اثر اته کاله وراندي چاپ سوئ دئ او (غ )

يې په اوسنی بڼه کښلې ده . که دا شکل دمرحوم وزیرصاحب

له خوا دپښتو سیند او پښتو ژبې لیار ترخپریدلو دمخه هم ایجاد

سوئ وي، بیاهم زه گومان نه کوم چي دهغه وخت دشرایطو او

وسایلو په پام کي نیولو سره دي يې اغیزه په بمبئي کي

دخلافت پریس ترکاتبانو پوري رسیدلې وي .

دیوان اخترمحمد مسمی به مرغوب الخواص مي هم پرله

واراوه دا اثر دپښتو اشعارو یوه کوچنوټې مجموعه ده چي په

۱۳۵۱ قمري کال (۱۹۳۲م ) د لاهورپه مسلم پرنټینگ مطبعه

کي چاپ سوې ده اخترمحمد د محمدزمان خان تره کي زوی

اودکندهاراوسیدونکی و دیوان يې تر پښتو سیند او پښتوژبې

لیار ترخپریدلو په ترتیب سره پنځه او شپږکاله دمخه خپور

سوئ دئ او ( غ ) توری يې په نني مروج شکل کښلئ دئ .

علوم کتاب چي تردا درو سرو قدیم چاپي اثر دئ نصاب

افغاني نوميږي اودمحمداسماعيل په قلم ليکل سوئ دئ ، ددې
اثر په کتلو سره مې اټکلونه په بشپړ يقين بدل سول محکه دا اثر
دوزيرمحمدګل خان مومند تر زيږيدو شل کاله دمخه يعني په
۱۸۶۶ م کال د( جناب معلی القاب مستر هنري بکټ صاحب
بهادر قائمقام انسپکټر مدارس حلقه سرحدی ) په حکم دپيښور
په جيل مطبعه کې چاپ سوئ دئ ( دارواښاد وزيرصاحب تولد
په ۱۳۰۳ق کال پيښ دئ ددغه کال لومړی ورځ د۱۸۸۵م کال
داکتوبرله لسمې سره برابره ده دوزيرصاحب مرحوم دزيږيدو په
کال دپښې خزانې اوسنی متن په کوئټه کې استنساخ سوئ دی
او نصاب افغاني دپښې خزانې د وروستي استنساخ تر نيټې شل
کاله يا نونس کاله دمخه چاپ سوئ دئ . )

په دې کتاب کې (ږ ) توری له ننې مروج شکل سره
يوشان دئ دنوموړي کتاب په ۴ـ۵ مخونوکې داسي راغلي دي:
« حرف دويم ږ قريب المخرج است با زای منقوطه ليکن به
ثقالت تلفظ وبه تلفظ زای منقوطه نيز جائز است چون محای

(زای ) بمعنی جای و مخار ( زار ) بمعنی فدا . اگرچه صورت
خطی حرف اول وحرف دویم در اکثر کتب افغانی یکسان دیده
شده است مگر درینجا فرق کردن ضرور آمد تا خواننده
تشخیص دهد مابین هردوحرف ونیزدرکتب شعرای قوم ختک
که در سنه یازده صد هجری نوشته شده این طور بنظرآمده
یعنی بجای سه نقطه یک همزه نوشته شده باینصورت ځ .
ودرین اوراق صورت دویم مقرر گشت .،

په پورتنی توضیح کې وینو چې د (ځ ) شکل د نصاب
افغاني دمولف محمد اسماعیل ایجاد هم نه دئ بلکي ده دخعکو
دلیکلود په پیروي دغه شکل غوره گنلئ دئ . له ۱۱۰۰ق
څخه تر ۱۳۰۳ق پورې چې دپښې خزانې دوروستي استنساخ
کال دئ ، دوه سوه درې کاله تیر سوي دي اودا کافي موده ده
چې د ( ځ )شکل دي له اتکه تر کوئټې یا ترعباس کاسې پورې
ورسیږي . دنصاب افغاني هغه فیصله چې د(ځ ) شکل په برخه
رسیدلای
کې یې کړې ده ، هم په شل کاله کې تر کوئټې پورې

سوای . که خبره سره راغونده کرو باید ووایو او ویې منو

چې د(غ ) توری د وزیرمحمدگل خان مومند ایجاد نه دئ ،

بلکې قدیم دئ دخیر البیان دعکسي چاپ په سریزه کې دراغلي

حکم توضیح باید داسې وسې چې دافغانستان په معاصرو

مطبوعاتو کې د (غ ) توری دوزیرصاحب پر لاس په دا اوسني

شکل بیا رواج سوئ دئ او اروابهاد وزیر صاحب د( قدماوو )

په پیروی دغه شکل غوره کړئ دئ .

اوس به نو درانه لوستونکي دقلندرصاحب دا حکم چې

«ځکه نـــــو دا سروپ دروغ دی چې دا کتاب ( پټه خزانه

ــ م ـ هوتک ) په ۱۳۰۳هجري کښې لیکلی شوی دی »

څرنگه تعبیر کړي ؟ اودې فیصلې ته به په کومه سترگه

وگوري چې وایي » دلته داخبره هم باید یاده وساتلی شي چې د

(غ ) دا توری په هغه قلمي تذکره کښې هم استعمال شوی دی

چې سلیمان ماکو پورې ترلې شوې ده په دې بنیاد دسلیمان

ماکو تذکره هم دپټې خزانې غندې یو جعلي دستاویز دی

اودبیت نیکه دملک یارغرشین اودشیخ اسمعیل دشاعری قصه
هم یوه افسانه ثابته شي . ! زه وایم دمطلقي بې انصافی په
سترگه به ورته وگوري .

## ماخذونه

(۱) ــ تفصیل بې په خیرالبیان ( عکسي چاپ ) سریزه دولویایم
مخ کې وگورئ .

(۲) ــ زنځیری ــ ۴۸ ــ ۴۹مخونه

(۳) ــ پټه خزانه فی المیزان ۱۷۱ مخ

(۴) ــ هماغه اثر ۱۰۲ مخ . په دې مخ کې داروارشاد وزیر
صاحب نوم گل محمدخان مومند لیکل سوئ دئ چې یوه
تیروتنه ده

(۵) ــ دافغانستان تاریخي پیښلیک ۲۸۰ مخ

(۶) ــ جنبش مشروطیت درافغانستان ۱۴۲ مخ

(۷) ــ پټه خزانه فی المیزان ۱۷۲ مخ

# دپټي خزانې دجعلیت افسانه

دپټې خزانې له رابرسیره کیلو سره سم دپښتنو او

غیرپښتنو په فرهنګي حلقو کې بیلابیل عکس العملونه لیدل

سوي دي . دابهیر کله تونډ اوکله بیا سوکه سي او زما په خیال

سرعت يې زیاتره دسیاسي اتموسفیر څخه اغیزمن ښکاري په

دې ترڅ کي کله کله د پټې خزانې د جعلیت خبره هم اوریدل

کیږي . دا موضوع ماته ددیرې حیرانتیا ور ده څکه لکه ما

چي د پټه خزانه في المیزان په باب پخپله یوه لیکنه کي اشاره

کړې ده، پټه خزانه زموږ له کوره وتلې ده دبدبختی ځای دادئ

چي زما اوس دخپل کور موادو ته لاس نه رسیږي او زه دې

ادبي بهیر ته هغه وخت ور کتبیوتلم چي زموږ پر هیواد باندې

دروسانو او روسپالو طاعون نازل سوئ و دادئ اوس اتلس کاله

وتلي دي زموږ دکورنی دیر هغه سپین ږیري اومشران چي په

دې برخه کې يې زما سره مرسته کولای سول ، یا مړه سوي او

یا له ماڅخه په زرګونو کیلومتره لیري دي . زه به بیا هم په دې

مبحث کي تر خپله وسه وسه څه وليکم .

درانه لوستونکي خبر دي چې دپښتو خزانې کومه خطي نسخه چې اوس زموږ په لاس کې ده دمرحوم حاجي محمداکبر هوتک په خوښتنه له هغې نسخې څخه دعباس کاسي په لاس نقل سوې ده (١٣٠٣ق) چې د سردارمهردل خان مشرقي له پاره دنورمحمدخروتي په قلم خطاطي سوې وه (١٢٢٥ق) د علامه حبيبي د هغه شهادت له مخې چې د پښتو خزانې د لومړي چاپ په دوه سوه دريم مخ کې راوړې دي حاجي محمداکبرهوتکي له پښتو کتابو او ادب سره مينه درلوده او دخطي اوچاپي کتابو يوه ښه زيرمه برابره کړې وه اوحبيبي صاحب ليکي چې ددغې کتابخانې زياتره مهم کتابونه اوس (١٣٢٣ش) هم ليدل کيږي . د همدې کتابخانې په باب ما له خپلو مشرانوڅخه زيات څه اوريدلي وو او دکتابخانې ځينې آثار مې پخپله هم ليدلي او کتلي دي حتی په دې وروستيو کلونو کې مې دحاجي محمداکبر مرحوم په خپل لاس کښل

سوئ کتاب اربعین فی اصول الدین چې دحجة الاسلام امام محمدغزالي علیه الرحمه اثردئ ، په کوټه بلوچستان کې له ګران ورور حمدالله صحاف څخه ولید ( ددغه کتاب یادونه ښاغلي زلمي هیوادمل په بیلیاني ګلونه ۲۱۲مخ کې هم کړې ده ) دحاجي محمداکبر له کتابخانې څخه علامه حبیبي مرحوم استفاده کوله اوزماسره په کندهار کې دعلامه مرحوم یوخط خوندي و چې دحاجي محمداکبر زوی عبداللطیف هوتک ته یې کښلئ او په هغه کې یې دګلشن روه کتاب دامانت په توګه غښتي غوښتئ و. عبداللطیف هوتک په برتانوي هندوستان کې دیر وخت تیرکړئ و په هندوستاني ژبو کې یې پراخه مطالعه درلوده او زیاتره یې زده وې.هیواد ته دراتګ په وخت کې یې زیاتره هغه آثار له ځانه سره راوړي وو چې دپښتو اوپښتنوپه باب انګریزانو لیکلي یا خپاره کړي وو. دې کتابونو دحاجي محمداکبرهوتک کتب خانې ته نوره غنی هم ور وبخښله. زما اکا حاجي عبدالمجید هوتک سږکال له کندهاره راته لیکلي وو

( داپریل پرنهمه ۱۹۹۲) چې ؛ دحاجي محمداکبر په کتابو او
د لالکو ( عبدالطیف هوتک موږ پخپله کورنۍ کې لالکوباله
ـ م.ه) په کتابخانه زه خبر اومالیدلې وه چې پـــــه یوه
صندوق ( یخدان ) کې په زېرخانه کې پراته وو اوعبدالودود
هم استفاده ځنې کوله ( مطلب یې خپل وروړ اروابښاد
میرزاعبدالودود هوتک دئ - م.ه) چې ځینې کتابونه یې لکه
گلشن روه او تاریخ خورشیدجهان اودیوه انگریزي اخبار
کلکسیون چې په هغه کې دمیونددجنگ بیانات اوعکسونه وه
اودسردارمحمدایوب خان عکس ما پخپله پکښې لیدلئ
اومطالعه کړې مې وه اویوکتاب چې په اردوژبه و نوم یې اوس
راځخه هیردئ خوسیاسي او بین المللي اصطلاحات پکښې وه ،
عبدالودود ترجمه کوله چې دطلوع افغان په څو شمارو کې
نشرسوي دي ؛ حاجي عبدالمجید هوتک اوس زموږ په کورنۍ
کې ترټولو مشر سپین ږیرئ دئ — له دې اوږده بیانه مې
مقصد دادئ چې دحاجي محمد اکبر هوتک په کتابخانه کې

دپښي خزانې موجوديت يو انکارنه منونکی واقعيت دئ حتی

حاجي عبدالمجيد هوتک دځپل ماما مرحوم حاجي احمدعلي

هوتک له خولې ليکي چې دغه اوسنی پټه خزانه هماغه نسخه ده

چې د حاجي محمداکبرهوتک په کتب خانه کې خوندي وه

داچي ځه راز د ارواښاد علامه عبدالعلی اخندزاده کاکړ

ترلاسه رسيدلې ده ، زموږ سره دقيق معلومات نسته خو دومره

ويلای سو چې دانسخه دحاجي محمداکبرهوتک د تبعيد په

وخت کې په کوئټه بلوچستان کې دده په فرمايښ استنساخ

سوې ده ( حاجي احمد علي هوتک د حاجي محمد اکبر هوتک

ميانځوی زوی دئ ـ دا شخص بايد د احمدعلي اخندزاده

هوتک سره مغالطه نه سي )

حاجي محمد اکبر هوتک دامیرعبدالرحمن خان د

پاچهي په سرکي کوټي بلوچستان ته تبعيد سوئ و د

تبعيدجريان يې داسي دئ . کله چي دميوند فاتح غازي

محمدايوب خان دکندهار په ملاعلم اخوند کلي کي د امير

عبدالرحـــمن خـــان له لاسه ماته خوري ( د یوزر و دوه سوه اته نوي یم کال دروژې میاشت ) غازي محمد ایوبخان فراريږي اوپلويان يې ځيني داميرپه لاس اعداميږي ( عبدالرحيم اخندزاده کاکرد علامه حبيبالله قندهاري مشهور په حبو اخوندزاده زوی اونور ) ځيني يې دننه په هيواد کي تيت او خواره کيږي په دغه وخت کي په کلات غلجائي کي د هوتکو او توخو له خوا هم د شيرخان توخي او شاه خان هوتک په مشری داميرعبدالرحمان خان په مقابل کي قيامونه کيږي او په بيرحمی سره ځبل کيږي ( چي تفصيل يې په تاج التواريخ لومړي توک يوولسم فصل کي سته ) ـ تردغو پاڅونو وروسته په کندهارکي هوتکو مشرانو او سپين ږيروته هم په کرکه کتل کيږي اوحاجي محمداکبر هوتک چي دکندهار يو معزز سوداگر اومخور شخص و او له بلي خوا يې د شهيد عبدالرحيم اخـــوندزاده له کورنۍ سره خپلوي درلوده د همدغي کرکي او بد نيت قرباني کيږي او کوټي بلوچستان ته

یې تبعیدوي ترڅو کلونو تبعید وروسته امیر ته دیوې پښتو

عریضې په وړاندې کولو سره د بخښنې غوښتنه کوي امیر یې

دبخښې فرمان صادروي ددغې منظومې عریضې اودهغې

عریضې اصل چې په یوزر و درې سوه یوولس قمري کال یې له

امیر سره دملاقات په خاطرکړې وه او دواړه په پښتوژبه دي ،

دحاجي محمداکبر هوتک له لمسي عبدالحکیم سره خوندي و

دمنظومې عریضې متن یې په بیدیاني گلونه نومې اثر ښاغلي

هیوادمل خوندي کړی او د دابلي کاپي زما سره سته ـ دحاجي

محمد اکبر هوتک تبعید د مرحوم عبدالعلي اخندزاده

(۱۲۸۹ـ ۱۳۶۴ق ) د ځوانی له کلونو سره برابر دی ـ لیري

نه ده چې علامه مرحوم دې په دغه وخت کې له حاجي محمد

اکبر هوتک سره پیژندلي وي اوکه دپې خزانې دا اوسنی نسخه

هماغه وي چې زموږ دکورنی مشران یې خبري کوي ، نو به

دانسخه دعلامه مرحوم لاس ته دحاجي محمداکبر تر بخښنې

وروسته د دوی دوو دپخوانی پیژندگلوی له مخې رسیدلې وي

ـ والله اعلم بالصواب ـ  له دې یادونو ځخه مي مطلب دادئ چي
د پټي خزانې د موجودیت په باب زموږ د کورنی د
مشرانومتواتر روایت ترما پوري رارسیدلئ دئ او د خاشي قدر
شک پکښې نسته .هغه سپین ږیري داسي کسان نه وو چي د
اوسنیو شکاکانو په شان به یې دځینو « مصلحتونو » په
خاطر ایمان په ترخه کي ایښوؤ .

اوس به راسو دجعلیت خبري ته یې اولومړی باید دا یوه
خبره ضروروکرم چي که ادبي اثار دهغو معیارونو له مخي
وڅیړل سي چي دپټي خزانې مخالفین ورځخه کار اخلي ، نو
زه په جرأت سره چلینج ورکوم چي حتی دنن ورځي لیکلي
چاپي اثار به چي لیکونکی ، دچاپ ځای او وخت یې هم معلوم
وي ــ ځوک راځخه اصلي ثابت نه کري او تول به جعلي
وخیژي ځکه :

ــ ضرور به یې کومه سنه ناسمه ثبت کرې وي ؛

ــ هرومرو به یې کومه حواله په دقت نه وي ورکرې ؛

ـ خامخا به يې په صحافت او ترتيب کې کومه غلطي راغلې وي ؛

ـ کومه نامانوسه کلمه او ناسم تلفظ به يې راوړئ وي ؛

ـ د سنواتو په تبديل کې به يې پښه ښوييدلې وي او داسې نورې په لسګونو تيروتنې او ښوييدنې .

پعه خزانه که جعلي وبولو نو دوه امکانه دچا مخې ته دريږي :

ـ محمد هوتک بايد جعل کړې وي ؛

ـ اروا ښاد حبيبي بايد جعل کړې وي .

دلومړي امکان په صورت کې بايد داپوښتنه وسي چې دمحمد هوتک له پاره به ددغه راز جعلکارۍ ضرورت څه و ؟ انګيزه به يې څه وه ؟ دپټې خزانې ځينې معلوم الحاله مخالفين د دغه اثـــر ليکنه د ځينو « خاصو مصلحتونو » زيږنده بولي . ددغه په اصطلاح مصلحتونو نوم خو دوی په ځرګند ډول نه اخلي مګر هغه کسان چې په دې بهير کې دمطالعې له څه اوږده

سابقه لري ، پوهیږي چې ددوی مراد له مصلحتونو څخه څه

دئ . دشاه حسین هوتک دپاچهی په دوران کې خو ددغه راز

مصلحتونو خبره موږ په هیڅ تاریخ کې نه ده اوریدلې په دغه

وخت کې نه دپښتو او فارسي موضوع په اوسني مزخرف شکل

مطرح وه اونه هم دپښتنو تر منځ سمتي اومحلي کشمکشونه

دومره شدید سوي وو چې خبره ان د ادب ساحې ته هم وتلې

وي . په دغه وخت دکندهار پښتني حکومت ته د ټولولر و بر

پښتنو دامید سترګې ور اوښتي،ټولو یې دثبات او دوام هیله

لرله په برو پښتنو کې دخوشحال خان خټک دکورنی دانشمند

مورخ افضل خان خټک چې په افغانستان کې د هوتکو د دورې

معاصر مورخ دئ ، په تاریخ مرصع کې دمیرویس خان غلجي

حالات لیکي او دهغو په ترڅ کې زموږ ملي قاید د ( ښه پښتون )

په نامه یادوي . په هغه وخت کې دپښتو ادب دایجاد او ودې

د جغرافیایي ماحول پرسر هیڅ کومه خبره نه وه دپښتنو ټول

تاریخ او ادب دټولو پښتنو مال وو . دحدودو دغه ناولي کرښې

له بده مرغه زموږ دزماني محصول دي . محمد هوتک اومعاصرينو يې نه دغه راز تنګ نظرۍ درلودې اونه په هغه وخت کې طرحه وې . ددې ټولو خبرو لنډيز داد ي چې د محمد هوتک له پاره دپټې خزانې دجعل له پاره هيڅ راز منطق نه سي جوړيدلای .

د دوهم امکان په باب چې ښايي اروا ښاد حبيبي صاحب جعل کړي وي ، ما دخپلې کورنۍ دمشرانو روايتونه درنو لوستونکو ته وړاندې کړل . زه ددې خبري کولوجرات ځان ته ورکوم چې د پټې خزانې د کشف اوا شاعت پر وخت اروا ښاد علامه حبيبي صاحب له خپل ټول فضيلت سره سره بياهم په دې سطح کې نه و چې د پټې خزانې د متن په شان دي دومره متنوع اشعار او نصوص وليکلای سي .

# دپتي خزانې مخالفين

# هغه کسان چې ددغه اثر دمحتوياتو په باب ورته شکوک پيدا دي

دا راز ليکوال پر دغو لاندې کټګوريو ويشلای شو :

## لومړی - کوړني - پښتانه

۱ - هغه څېړونکي چې علمي مسايلو ته له ساينټفيک نظره ګوري ددوی مخالفت شخصي او غيرعلمي بڼه نه لري ځکه يې څېړنه هم دستاينې وړ ده - دوی ته دپټې خزانې په متن کې دنورو سلګونو متونو په شان ځينې حل طلبه پوښتنې په نظر ورغلې ، هغو ته يې ګوته نيولې ده ، اعتراض يې هم دموضوع د لا سپيناوي په مقصد کړی دی او له نيکه مرغه زياتره پوښتنو ته يې جوابونه موندل سوي دي که له دې سره سره بيا هم ځيني جوابونه ورته دقناعت وړ نه وي ، هغوی خپلو څېړنو ته دوام ورکوي داسې نه کوي چې ديوې شپږې په خاطر ټول پوستين تناره ته وغورځوي .

۲ــ هغه محققین چې دعلمي مسایلو په باب عندي
قضاوتونه کوي شخصي جاه طلبیو او مخالفتو ، سیمه ییزو
عقدو او محلي اختلافو یې پر قضاوتونو پرده اچولې ده خپل
تور ورته سپین اودبل سپین ورته توربنکاري.ددې پر څنګ یوه
بله ټکه هم زموږ پر علمي ټولنو اواشخاصو نازله سوې اوهغه
داچې دتیرو درو لسیزو په بهیر کي زموږ هیوادته مارکسیستي
نظریات راوبهېدل او پرڅنګ یې ټش په نامه انترناسیونالیستي
افکار دورځي موډ وګرزیدل ددغه منحط انترناسیونالیزم تاداو
(بنسټ ) پر روس پالني ولاړ و چې په سیاسی ژبه یې ورته
سویعیزم وایه ، هرڅه ته له طبقاتي نظره کتل کیدل حتی که به
یو شاعر یا لیکوال په اقتصادي لحاظ لږ څه پرله پوري ژوند
درلود،په حاکمه طبقو کي به یې شمیرئ او اثاروته به یېکه څه
هم دیر ښکلي او عالمانه هم وو ، دفیودالي او سرمایه داري
ادبیاتو په سترګه کتل.د مترقي کلمه دخورا دیروټولنیزو او
علمي مسایلو له پاره پیشوند سوه لکه مترقي افکار ، مترقي

ادبیات ، مترقي تحلیل ، مترقي تولنه مترقي اصول او نور . دا
حالت تردې اندازې دانحطاط درجې ته ورسید چې یو وخت په
کندهار کې دلیسې یوملیر دښوونکوپه مجلس کې چې زه هم
پکښې شامل وم ، وویل ؛ ښوونکوصاحبانو ! نور نودنیوتن په
ارتجاعي قوانینودزده کوونکو ماغزه مه خرابوئ ، موږ مترقي
ساینس ته ارتیا لرو ا ) د همدغه مترقیت اغیزه وه چې ملي
مسایلو او ویارونـو ته په سپکه وکتل سوه. میره ځځه و چې تر
نورو زیات ملي ویارني تر پښو لاندې کړي ، ملي ادبیاتو ته
دشک په سترګه وګوري ، د هیواد تاریخ او افتخارات پر نه ځه
وشمیري ، داسي وښیي چې ګویا موږ دخپل ویارلي تاریخ په
اوږدو کې هیڅ نه درلودل او نه یې لرو ، دا قوم ـ دا ژبه ـ دا
وطن اصلاً ددې نه دئ چې دنړۍ د پرمخ تلونکو اولسونو په
لیکه کې ودریږي ، تر ننه چې زموږ دهیواد دتاریخ او ادب په
باب هرڅه لیکل سوي دي ځرنګه چې له مترقي اسلوب سره
سم نه دي لیکل سوي تول بابولالي دي ، لیکوالو له ځانه

تراشلي دي ....... په دې ډول به دغو سویعیسعي فاضلانو دمترقي توب سند تر لاسه کاوه.له بده مرغه پښتانه تر نورو زیات ددې شیطاني توطیې قرباني سول دپښتو ژبې او پښتنو دښمنانو به دغه راز کسان و هملې دریغ ته هڅول د « انسان واقعبین و سنت شکن » ، « نویسنده غیر متعصب و مترقي » لقبونه به یې ورکول . دا په اصطلاح فاضلان به هم دشپیشتو پر درخته وختل هر څه چې به پر خوله ورتلل ، ویل به یې او لیکل به یې او ځان به هم حق په جانب ورته ښکاره کیدئ . د پټې خزانې مخالفین چې ماپیژندل ، زیاتره یې دطبقاتي ادبیاتو په ور ( میکروب ) لړلي کسان وو .

## دوهم ـ کورني ـ غیرپښتانه

دوی هم پر دوو دلو ویشلای سو

۱ـ هغه بې غرضه څیرونکي دي چې نقد یې دمسایلو دلاښه سپینیلو په مقصد دئ ددوئ شکوکو ته جواب موندل څه سخت کار نه دئ ځکه ادعا یې بې غرضانه ده .

۲ـ هغه متعصبين او تنګ نظره کسان دي چې غالبا يې

دنورو په لمسون دهيواد دملي يووالي دکمزورۍ له پاره ليکې

راغښتې دي ـ دا پښتون دښمنه عناصر چې هرڅه ليکي يا وايي

مراد يې يوازې او يوازې له پښتنو سره دښمني ده . دوی د

ډېر تر ډېره فاجعې دمخه له پښتني فرهنګ سره خپل مخالفت

دالفاظو په پوښ کې څرګنداوه ، خو تر هغه وروسته يې په

هيواد کې دننه او له وطنه بهر په تيره بيا دهجرت په محيط کې

دخپلو زهرو د شيندلو له پاره زمينه مساعده وليدل څکه پسې د

اَنْ دپاسه ، چاپخانې په پېخر ، بې مسئوليتۍ تر حد تيري ،

تحريکونه او تشويقونه تر اندازې زيات وو. دکلونو کلونو

عقدې رابرسيره سوې ، دخراسان بازی ميدان تود سو ،

دکلکانې حبيب الله دورې ته نږدې و چې دافغاني رنسانس نوم

ورکول سي ، ملي اتلان يې خاينان وبلل ، ديوه اوبل زمامدار

دظلم او زورزياتي په خاطر يې ټول اولس ته سپکې سپورې پيل

کړې ، يې له دې چې عواقبو ته يې ځير سي هر څه يې وليکل ـ

چې په دې لړ کې دپښتو خزانې محتویات هم له پامه ونه لوېدل او وغندل سول. په دې برخه کې ما ته دحیرانتیا خبره داده چې پښتني ضد کمپاین ته په هیواد کې دننه دروسپالو او چپي عناصرو له خوا او له هیواده بهر د اسلامي افراطیونو له لوري لمن وهل کیده خو چې لیکنو او داستدلال طرز ته یې ځوک ګوري فکر کوي چې له یوه مغز ځخه راوتلي افکارتر مشورې وروسته په یوه واحد قلم لیکل سوي دي!

## په پښتونخوا کې

۱ـ ځینې پیاوړي محققین او ځیرونکي دي چې هدف یې دپښتني تاریخ او ادب سپړنل او راژوندي کول و او دي. هغوی نه یوازې پټې خزانې ته په انتقادي نظر کتلي بلکې دپښتو ادب او پښتني تاریخ زیاتره موجود اثار یې دکره کتني په معیار کتلي او ځیرلي دي. ددوی دځیړنو په نتیجه کې دپښتو ژبې او ادب دتاریخ ډیرې تیارې برخې روښانه سوي دي ددوی سعی مشکوري دې، نظر یې د درناوی وړ دی، پر

کره کتنو یې بناسوي استنتاجونه دپښتو ادب دتاریخ دپشپړتیا له

پاره خورا زیات اهمیت لري .

۲ـ هغه پښتانه ورونه چې له بده مرغه دسیمه ییزو تنګ

نظریو او بیځایه جاه طلبیو په دام بند سوي دي دوی د پښتو

ادب موجودیت ته دپیښور تر محدودې په هاخوا قایل نه دي ـ

لکه ځیني عظمت طلبه افغانان چې پښتونخوا ته دخپل جاګیر په

سترګه ګوري ؟ دا جریان که دلته دئ که هلته ، پښتنو او پښتو

ژبي ته تر اندازې زیات تاوانونه پیښوي ـ روښان ، خوشحال ،

امیرکرور ، شیخ اسعد ، ښکارندوی ، رحمان بابا ، حمید ،

پیرمحمد کاکړ ، کاظم خان شیدا دټولوپښتنو ګډې ویارنې دي .

## بهرني مخالفین او ختیځ پوهان

په بهرنیو کسانو دیادوني وړ شخص ناروېژی

ختیځ پوه مارګنسترن و چې په دائرة المعارف اسلام ( طبع

لندن ـــ ۱۹۲۰ م ) کې یې دپښې خزانې داصالت په باب

شکوک محرګند کړل او وروسته چي بيا زياتره اعتراضونه

دبهرنيو محيرونکوله خواسوي دي ، منشاء يې هماغه

دمارګنسترن ليکنه وه.ددغه ټولو شکونو او مخالفتونوعلمي

او منطقي جوابونه ارواښاد علامه حبيبي دپښتو خزانې په دريم

چاپ ( افست چاپ ) کي ورکړي دي چي ښاغلي لوستونکي

دي يې هوري وګوري. ترکومه محايه چي زما معلومات دي

زياتره دغه ښاغلي معترضين په خپلو وروستيو ليکنوکي زما د

استاد پوهاند زيارصاحب خبره « له خپلو پخوانيو خرخښو

لويدلي وو . »

دمخالفتونو دوهمه محپه دجهاد اوهجرت په شرايطو کي

را منځ ته سوه اوپه اصطلاح دوهم وار زاره دول ته لرګی

واچول سو اوس چي زه په امريکا اوغرب کي دپښتو خزانې په

باب کوم عکس العملونه وينم ( د تائيد اوترديد په دوارو

شکلونوکي ) ، منشاء يې زياتره د هيواد په روان سياسي

کړکيچ کي موندل کيدای سي - علمي محيرنو ته چي د سياست

ميکروب ننوت ، باور وکړئ چې ډېرې ناوړې نتيجې ځنې

راوزي .

## دليکونکي نور اثار

۱ ـ پاشلي ويناوي ـ د مولوي صالح محمد هوتک

ترتيب ، سريزه ، تحشيه او تعليقات ـ چاپ ۱۳۶۹ش

۲ ـ سرامني اوښکي ـ دشعرو مجموعه ـ چاپ ۱۳۶۹ش

۳ ـ دميرزاحنان بارکزي ديوان ـ ترتيب ، تصحيح ، سريزه ،

مقابله ، تحشيه او لغتنامه ـ چاپ ۱۳۷۰ش

۴ ـ ميرزا عبدالودود هوتک ـ چاپ ته تيار

۵ ـ ښکار او کندهار ـ چاپ ته تيار

۶ ـ احمد شاهي کندهار ـ چاپ ته تيار

۷ ـ پښتني قبيلې او روايتي شجرې ـ تر چاپ لاندي

۸ ـ بحرالعلوم ـ د دوست محمد ختک ـ لومړی توک

ترتيب ، تصحيح ، سريزه او حاشيې ـ چاپ ته تيار

۹ ـ خيرالبيان او دريم قرائت يې ـ چاپ (گډ هيواد)

۱۰ ـ د ملا امير ديوان ـ ترتيب او سريزه ـ چاپ ته تيار

۱۱ ـ دغره او د وره ـ ( ژوند ليک ) ناچاپ

۱۲ ـ دزړه ايشناو ـ دشعرو مجموعه ـ ناچاپ